# آواره شيدا

د کاظم خان شيدا پر ژوند او کړنو نوې څېړنه

حبيب الله رفيع

اوس یې پَل پهٔ مرو ایرو نښته عالمه
آواره شیدا دخهٔ دوبنهي ملنګ وٌ

# آواره شیدا

دکاظم خان شیدا پر ژوند او کورنۍ نوې څیړنه

لیکوال

حبیب الله رفیع

۱۹۹۱ع / ۱۳۷۰هـش

د کتاب نوم :   آواره شیدا

لیکوال :   حبیب الله رفیع

خطاط :   شهزاده هروي

خپروونکی:   د امان کتاب خپرولو مؤسسه

دخپرېدو کال:   ۱۹۹۱ع / ۱۳۷۰ هـ ش



بسم الله الرحمن الرحيم

# تړون

++++++++

دا روانښاد استاد کامل مومند

په نوم

چې د دوی عالمانه شکونه

د دي رسالي د رامنځ ته کېدو

سبب شول .

ح ـ رفيع



# فهرست





# سریزه

چې سایه کاندې مدام په سر دسترېو
«شیدا» شام د غریبۍ عجب عالم دی

کاظم خان «شیدا» د پښتو لوی شاعر وُ، د نازکخیالۍ او موشګافۍ له پلوه یې هنر بې سیاله او بې مثاله وُ او په دې ځانګړنه (خصوصیت) کښې د ده غوندې شاعر لا په پښتو کښې نه دی تېر شوی. خو لکه څرنګه یې چې شعر او فن ځلاند او معروف دي همدومره یې د ژوند خبره تته او تیاره ده؛ په ځوانۍ کښې له وطنه پردېس شوی او د خپل هنر د شګوفانۍ او غوړېدلو

موده یې په غربت، بېکسۍ او بې وطنۍ کښې تېره کړې ده؛ دی له هېواده مهجور او له خپلوانو نه لیرې ؤ، په ګمنامۍ او ګوښه ګیرۍ کښې یې ژوند کاوه، نه بل چا د ده د ژوند پېښې لیکلې او نه ده له دې چاره سره مینه وه.

دا پېښه یوازې د ده د ژوند په باب نه ده پېښه شوې بلکې د پښتو د زیاتو شاعرانو ژوند پېښې تتې او ورکې دي او دا لویه یواځې له پښتو ادیبانو سره نه ده شوې بلکې د نړیوال (جهاني) ادب زیات شاعران او لیکوال د فن له نظره مشهور او معروف دي خو د ژوند پېښو له خوا نوموړي او ګمنام.

کله چې پښتو لیکونکي او ادب څېړونکي د شیدا ژوند ته متوجه شول ډېر مړینه تر یوې پېړۍ زیات وخت اوښتی ؤ، د ژوند څېره یې نوره هم تته شوې وه، د پېژندګلوۍ په پلونو یې د زمانې بادونو نورې دوړې هم ورووړې او د ده یادونه یې ګرجن کړي وو.

بیا هم پښتو لیکونکو په یوه خوله ولیکل چې شیدا د افضل خان زوی، د اشرف خان لمسی او د خان خوشحال خان خټک کړوسی دی. پوره یوه پېړۍ دا عنعنوي پېژندګلوي را روانه وه، د دقیق څېړونکي او عمیق پښتو لیکونکي یې سند

روایتونه نشي قائم کولی نو ځکه کله چې په ۱۹۷۴ع کال د پښتو نوماند محقق او وابناد دوست محمد خان کامل مومند د افضل خان ختک مشهور کتاب " تاریخ مرصع " خپراوهٔ هلته یې د کاظم خان هیڅ نخښه نښانه و نهٔ موندهٔ، شکونه ورته پیدا شول او پوښتنې یې په ذهن کښې وګرځېدې ، په دې بې سنده روایت یې شک وکړ او دا یې په پټو سترګو تائید نهٔ کړهٔ چې کاظم خان د خوشحال خان ختک کړوسی دی ؛ خپلې پوښتنې یې طرح کړې او موضوع یې بحث ته وړاندې کړه ، بیا نو په موضوع تاوده بحثونه و شول خو موضوع لاینحله پاتې شوه او داسې سندونه رامنځ ته نهٔ شول چې د دې عنعنوي روایت ټینګ ملاتړ وکړي او دا ثابته کړي چې کاظم خان شیدا د خوشال خان ختک کړوسی دی.

زهٔ هم د پښتو د یوهٔ طالب العلم په حېث موضوع ورجلب کړم او سره لهٔ دې چې د شیدا غوندې مهجور او آواره یم، خاطرې پرېشان او ژوندې پاشان دی خو د خپل ذوق د تسکین او د ځان بوختولو لهٔ پاره په دې برخه کښې د سندونو په راغونډولو بوخت شوم او غوارم چې په دې لیکنه کښې د خپلې څېړنې او ګرو هرنې نچوړ وړاندې کړم ؛ زهٔ به هڅه کوم چې دا موضوع په داسې سندونو متکي کړم چې یو اړخیزه نهٔ وي او دا ثابته کړي چې کاظم خان د خوشال

خان ختک کړوسی دی که نه ؟

لهٔ لوی خدای نه پهٔ دې لاره کښې توفیق غواړم او د ځان لهٔ حاله سره ور د شیدا دا بیت راغبرګوم :

زهٔ هسې نهٔ وایم چې فراق ووژلم
حیات خوشته دی ولې بې خونده دی !

پهٔ مینه
حبیب الله رفیع
پېښور ، کوز تاکال
۱۹۸۷/۱۰/۲۱ ع
۱۳۶۶/۷/۲۹ هش
۱۴۰۸/۲/۲۹ هق

# لومړۍ څپرکی

# روایتونه او اټکلونه

اوس یې پل په مړو ایرو نښته عالمه
آواره شیدا د څهٔ د ونهې ملنګ وُ

لومړني هغه کتابونه چې کاظم خان شیدا د افضل خان ختک زوی، د اشرف خان هجري لمسی او د خوشال خان ختک کړوسی کښي : د ډېټي حیات خان «حیات افغانی»، د شیرمحمد خان ګنډه پور «خورشید جهان» او د انګریزي ختیځپوهانو راورټي «پښتو ګرامر» او د پلاوډن د «کلید افغاني» انګلیسي ژباړه دي (۱) خو دوی یوهٔ هم د خپلې دې خبرې له پاره ترڅان وړاندې سند نهٔ دی ښودلی او بې بنسټه ودانۍ یې کړې ده.

کله چې نیمه پېړۍ (صدۍ) پخوا پهٔ افغانستان کښې پهٔ

پښتو ادب څېړنې پیل شوې، افغاني څېړونکو او پوهانو هم همدا روایات را نقل کړل. اروا ښاد علامه عبدالحی حبیبي په «پښتانهٔ شعراء» (۲)، پوهاند صدیق الله رښتین «د پښتو ادب په تاریخ» (۳) او عبدالرؤف بېنوا «د کاظم شیدا په دیوان» (۴) کښې دا خبرې راغبرګې کړې.

په صوبه سرحد کښې هم د پښتو محققینو د همدې روایت پیروي وکړه، د روند محقق همېش خلیل په «دیوان کاظم خان شیدا» (۵)، ډاکټر انوار الحق په «دیوان کاظم خان شیدا» (۶) او ښاغلو رضا همداني او قارغ بخاري په «تاریخ ادبیات سرحد» (۷) او نورو لیکوالو هم په خپلو مقالو او لیکنو کښې دا روایت و پاله.

اروا ښاد استاد کامل مومند چې د «تاریخ مرصع» په سریزه کښې ددې روایت په برخه کښې شکونه او پوښتنې را منځ ته کړې (۸) بیا هم یې اثره پاتې شوې او د افغانستان او صوبه سرحد محققینو هماغه زړه لاره و پالله او یې لهٔ دې چې کوم شک وښیی شیدا یې د خوشال خان ختک کړوسی و بالهٔ. په دې برخه کښې د دوو مهمو کتابونو یادونه ضروري ده چې د تاریخ مرصع تر څېړېدو وروسته یو په کابل او بل په پېښور کښې خپور شوی دی؛ «فرهنګ زبان و ادبیات پښتو» د ځوان محقق ښاغلی زلمي هېواد مل

اثرچې د پښتو شاعرانو لنډ خو مطلبي ژوند لیک دی په همدې روایت ولاړ دی (۹) او «روهي ادب» د پروفیسر محمد نواز طائر تألیف چې د پښتو ادب په نوي طرز کښې تاریخ دی، دا تاریخ هم همدا روایت را اخلي (۱۰).

پوهاند عبدالشکور رشاد یوازینی سړی دی چې د اورواښاد استاد کامل سکوت نه او پوښتنې یادوي او په خپله کومه پرېکړه نهٔ کوي (۱۱).

## د روایاتو لنډیز :

د شیدا ژوند خېړونکو په یادو شوو آثارو کښې ددهٔ د ژوند خاکه داسې جوړه کړې ده :

کاظم خان شیدا د پښتو د مشهور لیکونکي افضل خان ختک زوی، د پښتو د نامتو شاعر اشرف خان هجري لمسی او د پښتو ادب د نومیالي پلار خوشال خان ختک کړوسی دی د ۱۱۳۵ - ۴۰ هـ ق کلونو ترمنځ زیږېدلی دی.

څهٔ وخت چې ددهٔ پلار وفات شو نو ددهٔ مشر ورور اسدالله خان د مشرۍ دستار په سر کړ او د خپل اقتدار د قیام او استحکام له پاره یې چې خپلو وروڼو او نورو خپلوانو ته کوم ناشوني حالات پیدا کړل کاظم خان شیدا په هغې خوښ نهٔ و، ان چې احتجاجاً د خپلې برخې جایداد نه هم تېر شو؛ پر اسدالله خان تر ټولو وروڼو نه کاظم خان زیات

ګران وُ ، ددهٔ په بدګمانۍ چې پوه شو نو ددهٔ لهٔ زړهٔ نه
یې د هر راز شکونو د لرې کولو هڅه وکړه او حتیٰ دهٔ
ته یې نوره ځمکه هم ورو بخښله او د ترهٔ لوریې هم
ورته په نکاح کړه خو څرنګه چې کاظم خان د خوشال
خان د زامنو او لمسیو ز بون حال د خپل پلار لهٔ لاسه
لیدلی وُ نو ځکه د اسدالله خان لهٔ خوا مراعات او بخښش
د هغهٔ شکونه نور هم زیات کړل.... کاظم خان شیدا
خپل کور کلی پرېښود ، لهٔ خپلوانو خصوصاً خپل ورور
اسدالله خان نه ډېر خپه وُ .

شیدا لومړی کشمیر ته ولاړ ، هلته یې ژده کړې وکړې
او کله یې چې څهٔ زده کړل سرهند شریف ته ولاړ او
په پای کښې رامپور ته ولاړ چې هلته د نواب فیض الله
خان پښتون ریاست وُ او نور ډېر پښتانهٔ هم دلته
ودان وو ؛ نواب دی د میاشتې په زر روپۍ په
ملازمت کښې واخیست .

ددهٔ ورور اسدالله خان بیا هم ددهٔ دراوستلو
کوښښ وکړ ، دوستان به یې پسې لیږل رالیږل خو
دهٔ د هغو نهٔ منل . څهٔ موده پس اتفاقاً شیداالهٔ خپلو
هندي ملګرو سره د سېل لهٔ پاره تر حسن ابدال راغلی
وُ او چې خپلوان یې پرې خبر شول پسې ور غلل خو چې

هر څو منتونه یې ورته وکړل شیدا سرای ته راغی.

کاظم خان شیدا په سرهند شریف کښې د نقشبندیې طریقې د پیر غلام معصوم مرید ؤ. دهٔ په ۱۱۸۱ هق کال د محمدي صاحبزاده په غوښتنه خپل دیوان ترتیب او د خپل ورور په وساطت یې محمدي صاحبزاده ته وړاندې کړ.

د کاظم خان شیدا د وفات تاریخ د یوې قلمي نسخې په حاشیه د یوهٔ نامعلوم شاعر لهٔ خوا د "دل نظیر" له جملې څخه راایستل شوی چې ۱۱۹۴ هق کال دی. وایي چې دی په رامپور کښې مړ شو خو لږه موده پس یې خپل خپلوان ولاړل او د دهٔ نعش یې سرای ته راووړ(۲).

## پایلیکونه (حواشي):

(۱) اروا ښاد استاد کامل مومند، د تاریخ مرصع سریزه ۴۰ مخ، ۱۹۷۴ع، یونیورسټي بک ایجنسي، پېښور. گلشن روه، د پوهاند عبدالشکور رشاد سریزه، ۷۲ مخ، ۱۳۵۶ هش = ۱۹۷۷ع کال، د پښتو د پیاوړتیا او پرمختیا آمریت، کابل.

(۲) اروا ښاد پوهاند عبدالحی حبیبي، "پښتانهٔ شعراء" لومړی ټوک، ۲۵۹ مخ، ۱۳۲۰ هش = ۱۹۴۱ع کال، پښتو ټولنه، کابل.

(۳) پوهاند صدیق الله رښتین، د پښتو داب تاریخ»،
۸۰ مخ، ۱۳۲۵ هـ ش = ۱۹۴۶ ع، کال، پښتو ټولنه، کابل.

(۴) «د کاظم شیدا دیوان»، د عبدالرؤف بېنوا سریزه،
لومړی مخ، ۱۳۳۰ هـ ش = ۱۹۵۱ ع کال، پښتو ټولنه، کابل.

(۵) «دیوان کاظم خان شیدا»، د همېش خلیل سریزه،
«ط» مخ، ۱۹۶۵ ع کال، اداره اشاعت سرحد، پېښور.

(٦) «دیوان کاظم خان شیدا - معه اردو ترجمه» ۳۷ مخ،
یونیورسټي بک ایجنسي، پېښور.

(۷) رضا همداني - فارغ بخاري، «تاریخ ادبیات سرحد»
پېښور.

(۸) د «تاریخ مرصع» سریزه، له ۴ مخ څخه تر ۴۹ مخ پورې.

(۹) زلمی هېوادمل، «فرهنګ زبان و ادبیات پښتو»
لومړی ټوک، ۲٦۱ مخ، ۱۳۵٦ هـ ش / ۱۹۷۷ ع کال، د ښوونې
او روزنې وزارت، د تالیف او ترجمې ریاست، کابل.

(۱۰) پروفیسر محمد نواز طائر، «روهي ادب»، دوهم ټوک
۱۰۳ مخ، ۱۹۷۸ ع کال، پښتو اکیډمي، پېښور.

(۱۱) ګلشن روه، د پوهاند رشاد سریزه.

(۱۲) دا روایات له یا دو شوو کتابونو نه په ګډه را استخراج
شوي چې یو د بل بشپړوونکي دي.

# دوهم څپرکی

# شګونه او تېګونه

ﻳﻲ سوختنه‌يي مردن دی لکه شمع
د شیدا طور یوځۀ مشکل پسند دی

کله چې اروابناد استاد کامل مومند د تاریخ مرصع د متن او حاشیو تر څېړنې وروسته په ۱۹۷۴ع کال کښې په دې کتاب سریزه لیکله نو څرنګه چې د کتاب په متن کښې چې د افضل خان خټک په نامو کښې د کاظم نوم نۀ ؤ لیدلی او هم د کاظم خان شیدا په دیوان کښې د پلار په مرثیه دوې قطعې راغلې وې چې بايد د افضل خان د مرګ نېټې تر څو کالو پورې وای، لۀ دې کبله چې د ۀ هېڅ داسې باوري شهادت نۀ موندې چې کاظم خان شیدا

دي د افضل خان زوی وی نوځکه یې د اقطعي هم د افضل خان د مړینې و نهٔ بللې او خپل شکونه او پوښتنې یې په لاندې ډول یاد کړل:

۱- پهٔ تاریخ مرصع کښې زموږ د مؤرخ افضل خان د زامنو پهٔ نوموکښې چې یې یاد کړي دي د محمد کاظم، کاظم خان شیدا یا شیدا نامه چېرې نهٔ ده راغلې.

۲- د کاظم خان شیدا په کمو تاریخي قطعو کښې یوه د دوو وروڼو فتح الله او الله نور پهٔ مړینې ده چې کال یې «آهاد قلوب غم» (۱۱۸۹) ښیلی شوی دی، پهٔ مقدمه کښې یې د محمد عابد خان نوم هم پهٔ طور د خپل ورور اخیستلی دی، لهٔ دغو درې واړو نامو یوه هم پهٔ تاریخ مرصع کښې د افضل خان د زامنو پهٔ نوموکښې تر نظره نهٔ راځي.

ترڅو چې د دغو خبرو او مشکلاتو تعلق دی نو کهٔ افضل خان پهٔ ۱۰۷۵-۷۶ هـ ق کال کښې زېږېدلی وهٔ نو پهٔ شوال ۱۱۳۶ هـ ق(*) کښې چې تر هغې مودې یې پهٔ تاریخ مرصع کښې حالات راوړي دي به د شپېتو یوشپېتو کالو وهٔ نه خو ناممکنه او نه غیر اغلبه ده چې پهٔ ۱۱۳۶ هـ ق(*) کښې او ترې پس ته یې نور زامن لونه هم شوي وي،

(*) پهٔ اصل کښې سهواً ۱۰۳۶ چاپ شوی دی.

یا داچې په شوال ۱۱۳۶ هـ ق* کښې یې ځینې زامن دومره واړهٔ ووچې د هغو د ذکر موقع تر د غه وخته دواقعاتو په بیا ن کښې رانغله .

۳- شیر محمد خان گنده پور په تاریخ خورشید جهان کښې وایي : " اشرف خان هم در آن قید خانه خود کشی کرد پس به جای او محمد افضل خان فرزند اشرف خان رئیس شد مگر از نزاع وخدشهٔ بهرام به آرام گذران کرده نمیتوانست درین حالت پرحسرت خوشحال خان وفات کرد و بعد ازو بهرام خان نیز مرد و محمد افضل خان شصت ویک سال حکمرانی بالا ستقلال نموده انتقال کرد ؟ " ( د کامل صاحب له نظره دا بیان له واقعیت سره سم نهٔ دی او ربښتیا هم لومړی خوشحال خان په ۱۱۰۰ هـ ق کال ، بیا اشرف خان په ۱۱۰٦ هـ ق کال او بیا بهرام خان په ۱۱۲۴ هـ ق کال مړهٔ شوي دي .)

۴- د تاریخ خورشید جهان مولف لیکي چې د بهرام خان د مړینې نه پس افضل خان په استقلال یو شپېتهٔ کاله حکمراني وکړه ..... بهرام خان د تاریخ مرصع له رویه په ۱۱۲۴ هـ ق کال وفات شوی نو حاصل یې دا شوچې افضل خان تر ۱۱۸۵ هـ ق کال پورې حکومت وکړ او ومړ .....

نوکهٔ کاظم خان             دافضل خان زوی وهٔ او دی او

کاظم خان شیدا هم یوکس وی نو یا خو په یاده شوې قطعه کښې څه نقص یا غلطي ده یا د تاریخ خورشید جهان په بیان کښې....

کامل صاحب لیکي: چې خورشید جهان بیا دېرې پېښې یادوي د افضل خان د زامنو اسدالله خان او محمد علي خان ترمنځ جګړې یادوي او اسدالله خان په دې پېښو کښې وژل کیږي نو افضل خان دا وخت مړ وُ که ژوندی؟ که ژوندی وُ نو څه یې کول؟ او د دغه ټولو واقعاتو په دوران کښې په هکله یې د دغو تاریخونو د لیکونکیو د خاموشۍ څه وجه ده؟ ناممکنه خو نه ده چې څه داسې اوږده دغوره تیا و دېښه شوې وي لکه فالج چې په ژوند یې له کاره ویستلی وي خو یا د شوی تاریخ نویسان دا نه وایي بلکې دا چې د بحث د لاندې دا ټول واقعات د افضل د مرګ نه پس شوي وو، نو که دا صحیح وي او افضل خان په ۱۱۸۳ هـ ق کال وفات شوی وي نو په حسن ابدال کښې به په ۱۱۷۲ یا ۱۱۷۷ هـ ق[*] د هغه د نمسي خوشحال خان د مرهټیو سره د جنګ کولو او په شهادت د سېدلو سوال هډو نه پیدا وېږي .....

یا د شوی تاریخونه دېرې تاریخي پېښې لیکي خو یو هم سند نه بنیيي نو ځکه یې کامل صاحب دېر تاریخي تناقضات را سپړلي او په همدې بنا یې په دې باب خپله پرېکړه داسې کړې ده:

---

(*) د تاریخ مرصع په چاپ کښې سهواً دا تاریخونه ۱۰۷۲-۱۰۷۷ چاپ شوي دي.

له پوره تنې انتقاده او د شکونو له اظهاره د امطلب نه دی چې گنې مؤثق یم چې کاظم خان شیدا د تاریخ مرصع دمؤلف افضل خان زوی نهٔ وُ او یوې نوې نتیجې ته د توپ وهلو یا د جدیدې نظریې پېش کولو شوق لرم بلکې مدعا مې صرف دا ده چې که هر څو د خوشال بابا له کهاله هم او د تاریخ مرصع د مؤلف افضل خان د زامنو لمسیو معاصر هم وهٔ د یاد شوو مشکلاتو د نظره د وړاندې داپهٔ وثوق نهٔ شو ویلی چې د افضل خان بن اشرف خان هجري زوی وُ او پهٔ دیوان کښې یې د پلار پهٔ مړگ لیکلې شوې درج تاریخي قطعه د همغهٔ افضل خان پهٔ مړینې ده (۱).

د پوهاند رښتین ځوابونه:

---

د تاریخ مرصع تر خپرېدو څو کاله وروسته پوهاند صدیق الله رښتین پهٔ دې اړه یوه انتقادي مقاله وکښله چې د کابل پوهنتون ورېځې مجلې نشر کړه. د دې مقالې له ټول متن سره زموږ کار نشته خود کاظم خان شیدا د بحث پهٔ برخه کښې د کامل صاحب پهٔ ځواب کښې لیکي:

بنا علي کامل د سریزې پهٔ (۳۴-۴۹)(*) مخونو کښې د

---

(*) پهٔ حقیقت کښې د کاظم خان مربوط بحث د تاریخ مرصع د سریزې له ۳۸ تر ۴۹ مخ پورې راغلی دی.

کاظم شیدا او افضل خان د مړینې د تاریخ په باب ډېر
څه لیکلي دي خو دغبرو په منځ کښې ورته دا سودا پېدا
شوې چې محمد کاظم دافضل خان زوی دی او که نه ؟
دی خپل شک او شبهه داسې ښکاره کوي :
۱- په تاریخ مرصع کښې دافضل خان په زامنو کښې
د محمد کاظم شیدا ( کاظم شیدا ) نوم نه دی راغلی .
۲- کاظم شیدا په یوه قطعه کښې د دوو ورونو فتح الله
او الله نور د مړک نېټه ۱۱۸۹ ښودلې ده .
۳- د خپل دیوان په مقدمه کښې یې د محمد عابد نوم د
خپل ورور په طور راوړی دی چې له دغو دریو وارو څخه
دیوه نوم هم د افضل خان په زامنو کښې په تاریخ مرصع
کښې نه دی راغلی .
زما په خیال د بناغلي کامل دغه ټول سوالونه او پوښتنې
بې ځایه دي .....
په دې باره کښې چې محمد کاظم د افضل خان زوی دی هېڅ
سودا نه ده پکار ، ټول ختیځ پوهان ګله راوړي ، هسې نور
او نور دغه شان درست افغاني لیکوال دغه خبره مني ؛
په تاریخ مرصع کښې د ۱۱۳۶ هـ ق پورې واقعات راغلي دي
او کاظم شیدا لکه چې د سوا خوشحال خان خټک لمسي د تاریخ
مرصع د لیکلو په وخت ( ۱۱۳۶ هـ ق ) کښې لا وړوکی ماشوم وُ او

یا لانځونږ یې بدلی .

افضل خان د واقعاتو په منځ کښې د خپلو زامنو نومونه یادوي لکه چې وایي : " فرزندي سعید خان فوجدار دلاچې وو ، (۴۱۳) مخ . ده دیوان کې د خپلو مشرانو زامنو محمد سعید ، محمد علي ، محمد حسن ، اسدالله ، محمد اشرف ، سیف الله نومونه یاد کړي دي او د محمد کاظم او محمد عابد نومونه یې د وړوکوالي یاد نهٔ ضرورت لهٔ کبله نهٔ دي ذکر کړي هرڅهٔ د فتح او الله نور د وړور ولی خبره ده دغه دواړه د کاظم شیدا ورونه نهٔ دي بلکې نور څوک دي چې د خپلوۍ یا اشنایۍ په وجه یاد شوي دي .

د کاظم شیدا د خټک ولې او د افضل خان د زوی ولې د پاره د دهٔ خپل شعرونه پاخهٔ شاهدان دي څوځایه یې خپل خاندان ، سرای او افضل آباد په ډېره مینه یاد کړي دي... نو څوک چې سرای او افضل اباد په دومره مینه یادوی هغه به ضرور د افضل خان د سترګو تور شیدا وي .

البته بناغلي کامل ته چې د شیدا په دې قطعه کښې سودا پیدا شوې ده :

چې والد(*) یې ارتحال وکړ    ځای یې جنت شه دنیا زندان وه
تاریخ یې دا رنګ د رحلت ووې    خرد و ما ته دا میاشت د شعبان وه

---

(*) په مقاله کښې ولد چاپ شوی .

تر اوسه پورې ادبي تاریخونو ددغې قطعې په باور
د افضل خان د مرګ نېټه ۱۱۸۳ هـ ق ښودلې ده نو ښناغلي
کامل ته هم په دې وجه سودا پېښه ده چې که د افضل
خان د زېږېدنې کال (۱۰۷۵) وبلل شي نو بیا ددهٔ عمر
(۱۰۸) کالو ته رسېږي او دا احتمال به سم نه وي مونږ
هم د ښناغلي کامل سره په دغه سودا کښې شریکېږو
لهٔ نورې پلټنې څخه داسې ښکاري چې دغه سنه د افضل
خان د مرګ سنه نهٔ ده بلکې ددهٔ د کورنۍ یا په بله ټبه
د شیدا د مور د مړینې سنه ده.

د دغې رباعي اوله مسره شعري کسر لري او یو سېلاب
کمه ده، باید داسې ولوستل شي: (چې والدې مې ارتحال وکړ)
په دې صورت کښې شعري کسر لهٔ منځه ځي او لس سیلابه
پوره کېږي. ددې توجیه په مرسته ښناغلي کامل هم د سریزې
په ۳۹ مخ کښې وایي چې د دوهمې رباعي اوله مصرع په
دوو نسخو کښې داسې ده: "غم به تر عمره د والدې کړم" لهٔ دې
نه څرګنده شوه چې دغه دواړه غلورېزې یې د والدې دي. لهٔ
حالاتو نه داسې ښکاري چې کاظم شیدا د پلار د مرګ په وخت
په سرای کښې وُ او دغه رباعي یې په رامپور کښې ویلې ده.
ښناغلي تقویم الحق کاکاخېل د افضل خان مرګ په (۱۱۵۳ هـ)
کښې ښودلی دی. ښایي چې دهٔ د افضل خان د نوابۍ دوره چې

(۶۱ کاله) وه د اشرف خان د بند لهٔ وخت نه (۱۰۹۲هـ) حساب کړې وي نو پهٔ دې صورت کښې دغه پوره ته سنه یې د مرګ نیټه ګڼل کېدای شي . مګر د تاریخ مرصع لهٔ حالاتو داسې ښکاري چې افضل خان تر (۱۱۰۰هـ) پورې لا د نوابۍ پهٔ څوکۍ نهٔ وُ ناست او دغه اتهٔ کاله یې ټول لهٔ بهرام سره پهٔ جنګ جګړو تېر شوي دي . بنایي چې دهٔ د (۱۱۰۰هـ) پهٔ شاوخوا کښې یا د پلار د مرګ نه پس دغه ځای نیولای وي او (۶۱) کاله یې ریاست کړی وي . نو پهٔ دې حساب ددهٔ د مړینې تاریخ د (۱۱۶۱هـ) پهٔ شا اوخوا کښې اټکل کېدای شي (۲) .

## د کامل صاحب تکراري دریځ :

---

کله چې د پوهاند رښتین څوابیه کامل صاحب ته ورسېدهٔ نو هغهٔ یو ځل بیا د یوهٔ پیاوړي وکیل (ایډوکیټ) پهٔ توګه د خپل دریځ دفاع وکړه او اړ شو چې خپل شکونه تکرار کړي او ولیکي :

« لهٔ ډېرې مودې راهیسې د نزې دور پهٔ پښتنو لیکوالو کښې مشهوره ده چې د پښتنو نامتو شاعر کاظم خان شیدا د تاریخ مرصع د مؤلف افضل خان خټک زوی دی . هرکله چې د کاظم خان خټک پهٔ دیوان کښې یوه قطعه ده چې دیوان - جوړوونکو یې د شاعر د پلار د مرګ تاریخي قطعه ګڼلې

او تاریخ یې (۱۱۸۳ھ) بنسیلی دی نو د تاریخ مرصع په سریزه کښې (مو) په مفصلو دلیلونو عرض کړی دی چې د تاریخ مرصع د مؤلف افضل خان تر سنه ۱۱۸۳ھ ژوند نهایي غیر اغلب او له دې کبله د کاظم خان شیدا که هر څو خټک او هم د خوشال بابا له خاندانه وه د تاریخ مرصع د مؤلف افضل خان زوی کېدل غیر محفوظ دي. علاوه له دې مې دا هم عرض کړی دی چې موږ د دې خبرې څه معتبر شهادت نه لرو چې هغه شاعر چې کاظم خان شیدا نومیده او شیدا یې تخلص وه د خوشال بابا د زوی اشرف خان هجری د زوی چې د تاریخ مرصع مؤلف دی له زامنو څخه یو دی.

بناغلی پوهاند رښتین په دغه لیکنې انتقاد کوونکی له ما متفق دی چې د تاریخ مرصع مؤلف افضل خان اغلب چې له ۱۱۸۳ھ ډېر اکاهو حق رسېدلی وه، دغه تاریخي قطعه هم چې د کاظم خان شیدا د پلار په مرګ ویلې کېلې شوې ده او ۱۱۸۳ هجري یې تاریخي کال بنسیلی شوی دی لکه دلیوې بلې قطعې چې شاعر د خپلې "والدې" (مور) د وفات په هکله ویلې ده د شاعر د مور په وفات ویلې شوې کېږي.....

د بناغلي پوهاند رښتین د استدلال نخښنه دالیدل شي چې که هر څو افضل خان له کال ۱۱۸۳ھ اکاهو هم وفات شوی وه خو هرکله چې د کاظم خان شیدا په دیوان کښې دا چېرې

نشته چې پلار يې په ۱۱۸۳ هـ کښې وفات شوی وهٔ ، نو د کاظم خان شيدا د ديوان له داخلي شهادت ته مونږ د دې خبرې رد نهٔ لرو چې هغه د افضل خان زوی وهٔ ....

د بحث لنډولو له پاره به زهٔ يو درنګ لره ومنم چې مصرعه هم هغه ډول په کار ده چې څرګنګ يې ښاغلی پوهاند رښتين غوره کښي : "چې والد يې ارتحال وکړ" نو د دې خبرې به نه زيا ته نه زيا ته نتيجه داوي چې د تاريخ مرصع مؤلف افضل خان د ۱۱۸۹ او هم د ۱۱۸۳ کال هجري نه آګاه و مړ دی (لهٔ) مونږ سره به د کاظم خان شيدا د ديوان د داخلي شهادت په بنا د دغې خبرې رد نهٔ وي چې کاظم خان شيدا د افضل خان د تاريخ مرصع د مؤلف زوی دی . خو د ثبوت بار به په هغه چا وي چې د يوې خبرې دعوی کوي، کهٔ مونږ د کاظم خان شيدا د افضل خان موصوف د زوی کېدلو د دعوې رد نهٔ لرو نو بيا د دعوی نهٔ ثابتېږي .

سوال دا دی چې د دعوې ثبوت څهٔ دی ؟

ښاغلی پوهاند رښتين د خپل موقف په تاييد کښې چې کومې خبرې کوي دادي :

"۱" د شيدا هغه شعرونه چې ترې د دهٔ خټک کېدل ، سرای او د خوشال بابا له کهاله سره تعلق او مينه .

"۲" ټول خټيځ پوهان لکه راورټي ، هيوز د غه شان درست

افغاني لیکوال د غه خبره مني .

"۳" افضل خان د واقعاتو په منځ کښې یوازې د خپلو مشرانو زامنو نومونه یاد کړي دي او د محمد کاظم او محمد عابد نومونه یې د وړوکوالي یا د نه ضرورت له امله نه دي ذکر کړي ..... فتح الله او الله نور د کاظم ورونه نه بلکې د اشنایۍ په وجه یاد شوي دي .

تر څو چې د وړومبۍ خبرې تعلق دی نو ما هم دا خبرې منلې چې کاظم خان شیدا خټک او املاً د سرای او سېدونکی و بلکې دا هم چې د خوشحال بابا له خاندانه و .... خو د غه ګردې خبرې .... د هغهٔ د مشر زوی اشرف خان د زوی زوی کېدل څنګه ثابتوي ؟ .... د دوهمې خبرې په باب به عرض وکړم ختیځ پوهانو چې کوم کار کړی دی سره ددې چې باید ورته په درونه نظر وکتل شي له انتقاده پوره نه دي . وړومبی له دې چې زهٔ په د غه لړ کښې د ختیځ پوهانو ځینې ډېرو سختو غلطو ته ګوته ونیسم ما د پادري هیوز په آثارو کښې چېرې دا خبره ونهٔ لیدله چې کاظم خان شیدا د افضل خان زوی دی ..... البته پلاوړن د هیوز د کلید افغاني انګریزي ژباړونکي شیدا د افضل خان له زامنو څخې یاد کړی دی او راوړتي هم ضرور هغه د افضل خان زوی بللی دی ... ما چې د غه شهادت معتبر نهٔ دی

ګڼلی نو د خپل موقف د پاره ئې په سرېزه کښې ځنو په تفصیل دلایل ورکړي دي ، دلته به په لنډه دومره ووایم چې راورټي ، پلاوډن ، شېر محمد ګنډه پور او محمد حیات خان کهتړ هم دیوې زمانې خلک وو ، د شېر محمد خان او محمد حیات خان کتابونه له تاریخي حیثیته ډېر کم پایه کتابونه دي ..... راورټي په پښتو مینانوکښې د مرستې ، پوهې او خدمت له رویه ډېر اوچت او جوت مقام لرونکی دی او د کلید افغاني په انګریزي ترجمه د پلاوډن حواشي هم د هغهٔ په علمي ذوق لا محققانه مزاج دلالت کوي خو د شېر محمد خان ګنډه پور او محمد حیات خان کهتړ او که د راورټي او پلاوډن وینا وې د یوې داسې خبرې په هکله چې د هغوي له زمانې نه ډېره اګاهو وي ځان له سند نشي ګڼلی ، بیا یوه هم د خپل بیان د پاره نه د دستاویزی نه د زباني سند یا شهادت چېرې حواله ورکړې ده .... اوس باید چې د یا دو شوو ختیځ پوهانو د ځینې سختو غلطیو چې څهٔ خو لطف هم لري نښاندهي وکړم ( بیا او وابناد کامل د ځینې ختیځ پوهانو جالبې غلطۍ په ګوته کوي ) ....

پاتې شوه د بناغلي پوهاند رښتین دا خبره چې افضل خان د واقعاتو په منځ کښې سرېپ د خپلو مشرانو زامنو نومونه اخیستي دي او د کاظم خان شیدا او عابد خان نامې ئې دهغو دکوچنیوالي یا د

ضرورت د نشتوالي له رویه چېرې نهٔ دي اخیستلي او دا چې فتح الله او الله نور د کاظم خان نسبي وروڼه نهٔ دي دوستان يې دي او دې د پاره يې ورته وروڼه ویلي دي . د ستا یلي پوهاند مطلب دا دی چې کاظم خان شیدا د افضل خان زوی دی او هم عابد خان .... او سرېږه پهٔ دې وجه چې د دلو نومونه چېرې پهٔ تاریخ مرصع کښې نهٔ دي راغلي دانش ویلی چې دوي د افضل خان زامن نهٔ دي . کهٔ دا خبره منلې شوې وي چې کاظم خان او عابد خان د افضل خان زامن دي او پوښتنه کوونکی او پوښتنه کېدونکی یې پهٔ باب څهٔ اختلاف نهٔ لري نو د دې پوښتنې چې پهٔ تاریخ مرصع کښې دا دواړه ولې مؤلف پهٔ خپلو زامنو کښې نهٔ دي یاد کړي ، پهٔ ځواب کښې ویل کېدی شي چې لهٔ دې کبله چې دېر واړهٔ به وو او د واقعاتو سره چې کتاب کښې بیان شوي دي د تعلق نهٔ لرلو پهٔ سبب يې د یادولو ضرورت نهٔ وُ خو هر کله چې بحث کېدونکې خبره تنازعه وي او یو فریق يې د اثبات پهٔ هکله شهادت ووایي چې بوخوا خو شهادت ناقص او نامعتبر دی او دې سره پهٔ تاریخ مرصع کښې چې مؤلف پهٔ کښې د خپلو کمو زامنو نامې یادوي نهٔ خو چېرته د کاظم خان شیدا او نه د هغو کسانو چې دی يې خپل وروڼه بولي نامې چېرې لیدهٔ شي نو د دغه ځواب به چې ښاغلي پوهاند رښتین کړی دی موزون نهٔ وي . دلته به دا ویل بې ځایه نهٔ وي چې موږ ته د افضل

خان د خپل بیان له رویه د هغهٔ دوه بیبیانې معلومې دي
یوه یې د ماما لور چې بې اولاده وه او دوهمه چې د محمد
علي خان دوي والده وه . دد غې بي بي د حق رسېدو ذکر
افضل خان د ۱۱۳۰ هـ ق د وا قعاتو په ضمن کښې کړي . تر دغه
وخته او تر دې ځایه پورې د شپږو کسانو نامې لولو چې افضل
خان په کښې هر یو د زوی یا فرزند په طور یاد کړی دی،
هغه نامې دا دي : محمد علي خان ، محمد حسن خان ، اسدالله خان
محمد اشرف خان ، سعید خان ، سیف الله خان . د نورو چا نامه
په دغه طور نه ده اخستلې شوی ؛ کېدی شي چې افضل خان
د هغه وخت نه پس بل واده لا نور ودونه کړي وي او دا
هم ضروري نهٔ ده چې د غه شپږ زامن هم له یوې بي بي
شوي وي خو دد غو خبرو په هکله چې ممکن خو دي موږ
لا تر اوسه هیڅ شهادت نهٔ لرو . د بناغلي پوهاند رښتین
دا وینا هم دلیل غواړي چې فتح الله او الله نور صرف د دوستۍ
له مخې کاظم خان شیدا ورونه یاد کړي دي ، هر کله چې په
واضحو الفاظو کښې یې ورله ورونه ویلې دي او په متعلقه
قطعه کښې داسې هیڅ توری یا توري نشته چې ورسره یې د
دوستۍ ، اشنایۍ نغوته کوي لو حقیقي معنیٰ پرې ایښې مجازي
معنیٰ کول څهٔ جواز نهٔ لري .

هر کله چې ماله دې خبرې د تاریخ مرصع په سرېزه کښې

سکوټ انکار نهٔ دی کړی چې کاظم خان شیدا د تاریخ مرصع د مؤلف افضل خان زوی دی ځکه چې د ثبوت یې نشتوالی د یوې خبرې د نادرستۍ یا غلطۍ کېدلو ثبوت نهٔ دی نو ما لهٔ خپله انده بحث پهٔ احتیاط راټول کړی دی ....

اوس نو د پښتنو لیکو نکیو خصوصاً څېړونکیو خوښه ده چې (پهٔ) دغه باره کښې د راوړنې وغیره پهٔ وینا قناعت کوي او کهٔ د نورو لټون ضرورت هم محسوسوي .....

کامل صاحب پهٔ خپل "۱۶۳۰ع" نومي اثر کښې پهٔ دې هم بسنه نهٔ کوي، پهٔ کاظم خان شیدا پسې نور لټون هم کوي لهٔ "تذکرهٔ انتخاب یادګار" او "تذکرهٔ کاملان رامپور" څخه هم (چې دوې معتبرې هندي تذکرې دي) ددهٔ پهٔ باب معلومات راخلي خو هلته هم دا پهٔ لاس نهٔ ورځي چې کاظم خان شیدا د افضل خان خټک زوی دی او ددهٔ د ژوند پهٔ باب لهٔ ځینې نورو مشکلاتو سره هم مخامخ کېږي چې دلته یې راوړل اوږدېږي خو پهٔ پای کښې وائي:

پهٔ اخره یو ځل د بنا غلیو لوستونکیو (څخه پهٔ) بخښنې غوښتلو سره ددې خبرې تکرار کوم چې ما ددې خبرې نه سکوټ انکار نهٔ دی کړی چې شیدا د تاریخ مرصع د مؤلف افضل خان زوی وهٔ، بلکې د تاریخ مرصع پهٔ سریزې کښې مې د هغو مشکلاتو نشاندهي کول مقصد وو چې لهٔ رویه یې موږ

په وثوق سره نه شو ویلی چې کاظم خان شیدا د ستاینې افضل خان زوی وه نو که مونږ په دې باب خپل لټون او مرسته جاري وساتو نو هیڅ زیان به یې نه وي او زه پرې خپه نه یم که نتیجه یې د ښاغلي پوهاند رښتین د موقف په تایید کښې راوځي لا به خوشحال یم که دغه کار هم زما په کوشش وشي (۳).

## پایلیکونه (حواشي):

(۱) د تفصیل له پاره وګورئ: " تاریخ مرصع " د استاد کامل مومند سریزه، ۳۸ - ۴۹ مخونه.

(۲) پوهاند صدیق الله رښتین " تاریخ مرصع " ( مقاله ) وږمه ( مجله ) ۲۱ کال، ۲ ګڼه، ۵۴ - ۵۶ مخونه، ۱۳۵۶ هش/۱۹۷۷ع کابل پوهنتون، د ادبیاتو پوهنځی، کابل.

(۳) د تفصیل له پاره وګورئ: د اروا ښاد استاد دوست محمد کامل مومند " ۱۶۳۰ع " نوي اثر، ۱۴۷ - ۱۶۶، ۲۰۵ - ۲۲۹ مخونه، ۱۹۸۵ع، د چاپ زی، پېښور.

# درېيم څپرکی
# سندونه او لاسوندونه

د افغان لهٔ شعراء پهٔ شیدا باندې
د ادب پهٔ مقتضی د خان شرف دی

د پښتو لوی ، نامتو او ایماندار محقق استاد کامل مومند دې خدای وبخښي ، هغوي مخکښې لهٔ دې چې د دې کتاب پهٔ حل بریالی شي وفات شو ، زهٔ پهٔ داسې حال کښې چې د دوی پاک روح ته دعاګانې استوم پهٔ دې خبره کښې هڅه کوم چې د باوري سندونو او لاسوندونو (دستاویزاتو) پهٔ رڼا کښې موضوع وسپړم او پهٔ دې باب غوارم قدم پهٔ قدم وړاندې ولاړ شم .

## لومړی؛ د شیدا د دیوان لاسوندونه:

۱- کاظم خان شیدا خټک دی، خټکمتوب یې د دیوان له سریزې ځخه چې دده په خپل قلم ده او هم له متن ځخه څرګندیږي.

شیدا د دیوان په سریزه کښې وايي: «راقم ددې صحیفې محمد کاظم، شیدا تخلص، خټک نسب، حنفي مذهب، نقشبندي مشرب.»

او د دیوان په متن کښې داسې وائي:

کهٔ دې جام لکه حباب و نه نیو سیند ته
آفرین دې پهٔ همت شیدا خټکه

+++

خشوع نشان دی د نېکبختیه
کهٔ دې روزي شي شیدا خټکه!

۲- شیدا د خان (خوشال خان خټک) د خاندان غړی دی او دا ارتباط پهٔ شاعرانه الفاظو کښې داسې څرګندوي:

| | |
|---|---|
| پهٔ دا هونره پښتنو کښې | بیا پهٔ ژبه د پښتو کښې |
| پهٔ دا فن کښې خوا شخاص دي | چې پهٔ نزد دخرد خاص دي |
| چې خوشګوی وهمه دان دي | ډېر زموږ د خاندان دي |

. . . . . . . . . . . . . . . .

| | |
|---|---|
| د پښتو شعر معلوم وُ | پهٔ معنیٰ کښې کالمعدوم وُ |
| چې قلم پهٔ لاس د خان شهٔ | مـ [illegible] يي لوی دیوان شهٔ |

تصانيف يې فراوان شول　　مستعد د درست افغان شول
سلاست د عبارات هم　　لطافت د اشارات هم
ډېر دقت د معاني هم　　بلکې خوږ همه داني هم
په کلام کښې يې ظاهره　　په اقلام کښې يې باهره
سليقه يې کړه عيانه　　طريقه يې کړه بيانه
هر شاعر چې د افغان دی　　رېزه چين د خان دخوان دی
في المثل که بل مهتاب وي　　مستفيد د دې آفتاب وی
چې په غرونوشي لار مافه　　قافله دروې تر قافه
چې وي پُل په دريا باندې　　څوک به غم د شنا کاندې
له حسده که ځاف زړه کړې　　په دا کار کښې انصاف وکړې
خان ممتاز د تمام روه دی　　بل استاد د دې گروه دی
په ميدان د ممتازانو　　همعنان د برق تازانو

او ترخان راوروسته ځان ته وار سپاري:

ما چې دا کلام ادا کړ　　نوی طرز مې را پيدا کړ
په پښتو کښې گويا خاص يم　　سزاوار د اختصاص يم
چې په لاس دخان قلم ؤ　　قلمرو يې دا عالم ؤ
هغه وخت که دا سواد وی　　په کاغذ بويه چې صاد وی

او بيا وايي:

شيدا خان به دې کا مير د شاعرانو
که مزار و ته يې عرض د تا انشاء شي

او همدا د نوي طرز د ايجاد لهٔ امله خپل کلام تر نورو لوړ ګڼي خو يوازې خان ځکه تر ځان لوړ بولي چې د ادب مقتضي داده يعنې هغه يې د کورنۍ مشر دی:

د افغان لهٔ شعراء پهٔ شيدا باندې
د ادب پهٔ مقتضی د خان شرف دی

۴ـ شيدا د سرای او سپدونکی ؤ او پهٔ خپله ويناکښې د سرای يادونه ډېره ډېره کوی. لومړی سرای هلته يادوي چې د خوشال بابا ستاينه کوي او وايي:

«سرای» مطلع د دې آفتاب دی — پهٔ عالم يې هرځای تاب دی
پکښې هسې شان نکات دي — چې نازک لکه ذرات دي
پهٔ رنګين خيال رنګين دي — سر تر پايه ګلزمين دي
دا قطعه ده ګل افشانه — رنګينه تر بدخشانه
کهٔ انصاف کړې قابل خېز دی — دا بهار عنادل خېز دی
هم يې ښه آب وهوا شته — بلبلان يې خوشنوا شته
هر بلبل يې خوش آهنګ دی — د خيال ګل يې رنګارنګ دی
کهٔ يې بحر يا يې بر دی — کهٔ يې سمه يا يې غر دی
کهٔ يې باغ يا يې صحرا ده — کهٔ يې خار يا يې خارا ده
کهٔ يې ګرګ يا يې آهو دی — کهٔ يې بوم يا يې تيهو دی
کهٔ يې وز يا يې پلنګ دی — ګرېوه، يا يې ګړنګ دی
کهٔ يې ميرزی يا يې ښکار زی — کهٔ يې سير يا يې پيکار دی

هر نفس زما په یاد دي    دم په دم زما اوراد دي
دا کلام د دانشمند دی    که یې واورې دلپسند دی
د وطن مینه ای ځانه    را پیدا ده له ایمانه
په حرمت د پاک احمد وه    صلوات باندې سرمدوه
هم په آل، هم په اصحابې    په پېرو د پاک جناب یې
نه یوځل په څو کرته    بلکې زر زره مرته
څو گردان وي دا سپهر    درخشان وي ماه و مهر
څو چمن د بهاران وي    انجمن د ښه یاران وی
څو باده جام د ساقي وي    څو نشه، خمار باقي وي
څو خیام وي د ښدروې    په قیام وي د باغ سروې
څو فقره د دې سپنج وي    څو نکته او نکته سنج وي
تر هغه دې "سرای" ودان وي    هم دې جوړ دا خاندان وي
ښې خبرې بیا موزونې    پکښې او سه روز افزونې
گلستان یې خرم او سه    بلبلان یې بې غم او سه
پرې گوزر د خزان مه شه!
عندلیب یې نالان مه شه!

د هند په پردېسي کښې یې د سرای یاران په زړ   او
او د خپلو اشعارو د سوغات ورلېږلو هیله لري:
شیدا وا سېود   اشعار له هنده
ستا د رای   استا د سرای یاران دي

بل ځای ځان د سرای نه آواره شوی بلبل بولي :

چې گوزر وکړې صبا د سرای په لوري
آواره بلبل یې یاد په گلزمین کړه

په سرای کښې د «ولی» او «افضل آباد» یادونه داسې کوي :

ځکه صبا دی، باد مراد دی
چې یې لیدلی افضل آباد دی
راته یې ووې د حال په ژبه
تازه دې گل او سرو شمشاد دی

+++

گوردن ته بویه وړاندې جلوه
ښارې په غرور کښې دخچلو
گلبانگ به خه کا د بلبلانو
زما دیوان دی باغ د «ولی»

+++

نسیمه ورشه د سرای سواد ته
له هغه پسه افضل آباد ته
سلامې وکړه په دواړو لاسو
درو دیوار و گل و شمشاد ته

۴ـ کاظم خان په ځوانه ځوانۍ کښې د زمانې د ناخوالو
له لاسه له «سروه» نه وتلی او په لوی هند کښې پردیس

شوی دی ، دی د خپل دیوان په سریزه کښې په ځوانئ
لهٔ خپله کوره وتل داسې بیانوي :

« په عنفوان الشباب کښې مې استراحت د حضر په محنت
د سفر مبدل شه او الی آن مې په شام د غربت صبح د
وطن مألوفه طالع نهٔ دی . انواع د محن دلشکن چې
لازمه د سفر و منافي د راحت و فراغت دی لاحقه د خاطر
فاطر :

مدتی شد چون قلم در مشق سرگردانیم
تا چه آرد بر سرم آخر خط پیشانیم

بالجمله په کلبه د جدائی او په زاویه د تنهائی کښې
چې مصداق د دې مضمون یم ، فرد .

دل می تپد و نیست کسی دادرس ما
از قافله دور است خروش جرس ما » .

هوا شیدا په همدې ځوانئ کښې مسافر کیږي ،
هندوستان ته ځي او کوم ځایونه چې دی یې په خپل
کلام کښې یادوي دادي :

چې باران یې همیشه د ژړا اوري
دا « کشمیر » په شیدا کوره تیرا شه
* * *
شیدا واسته د رنګین اشعار لهٔ « هند »
ستالهٔ راې سره اشنا دسرای یاران دي

شیدا واستوه دیوان لهٔ "هنده" روه ته
چې لبریزې پهٔ صداشې کوهستان هم

+++

ورځ د بسنت ده وریځ ده ګورئ — و "بریلی" ته ځوله "رامپوره"
ګویا زعفران دي دا زرد ګلونه — چې بهره مند یونن لهٔ سروره

+++

تهٔ بلبل د ولایت راغلې لهٔ سرایه — د توتي غوندې پهٔ "هند" سخن سرایه
ستا اشعار دي ګل شکر سخن آرایه — پهٔ ګفتار دې شیدا خوښ یم وایه وایه!

زمانې د تا پهٔ طبع آفرین کړ
پهٔ هندکښې د خپل ګشت او ګوزار پهٔ باب وایي :

پکښې نشته سیه مست د هغو سترګو
ګرځېدلی پهٔ درست هند پهٔ بنګاله یم

+++

سبزان که وي همسر د ګلرخانو
بېهوده راغی شیدا تر هندو باره

+++

ګورئ پهٔ باغ کښې د رامپور، وربزې
نهٔ دي د ونو تر پانو لرزې
+++
پښتانهٔ د کتهیر متزلزل دي
کهٔ هر څو وو که غر قوي بنیاد

هرګز نهٔ کا انتفاع پهٔ هندوستان کښې
پهٔ تموز وي ځنې سرد دروه سراب

۵ - شیدا وطن ولې پرېښود؟ پهٔ دې باب پهٔ صراحت څهٔ نهٔ وايي خو پهٔ شاعرانه ډبه ډېرې اشارې او نغوتې لري چې موږ ته ددهٔ د تلو پهٔ باب مواد راترلاسه کوي؛ کهٔ څهٔ هم موږ د شیدا داسې اشعار نهٔ لرو چې دهٔ دې پهٔ روه کښې ویلي وي ځکه دهٔ د دهٔ پهٔ وینا پهٔ ځوانۍ وطن پرې ایښی او بنایي دا داسې وخت وي چې شاعري يې لا نهٔ ده پیل کړې او کهٔ احیاناً پهٔ روه کښې يې شعرونه ویلي هم وي داسې نخښنه نهٔ لري چې سړی حکم پرې وکړي خو پهٔ هندکښې يې چې څهٔ ویلي پهٔ هغو کښې داسې خبرې نښته چې ددهٔ د تللو او هجرت پهٔ باب موږ ته ډېر څهٔ راترلاسه کوي.

تر هر څهٔ وړاندې ددهٔ لهٔ یوه بیت نه ښکاري چې دهٔ د ورونو د اختلاف او د سیسو لهٔ امله وطن پرېښود او ځان يې لهٔ مظلوم یوسف (ع) سره تشبیه کړ:

د اشفاق طمع به څهٔ کړې لهٔ اخوانه
نتیجه يې ورکېدهٔ دي لهٔ کنعانه

دی خپلو دردولي، ځورولی او ښلتون ته اړ کړی دی نو ځکه تمه نهٔ ور ته لري:

د دریاب لهٔ سرد جوشۍ دحباب زړهٔ چوي
شیدا قطع د اُمید بویه لهٔ خپلو

+++

شیدا څهٔ کړي د دې وخت رشته داری
د سوزن زخم پهٔ زړهٔ دهر اغوُر دی

+++

ماچې ښاکړه د دنیا و خان و مان ته
څهٔ حاجت لرم و نور سرو سامان ته
مبارکه شه پرتا د دنیا خوښه
آواره شیدا روان دی بیابان ته

٦ ـ هٔ خپلو ولې خپه شو؟ داځکه چې ددهٔ کورنۍ د خانۍ
او جاگیردارۍ پهٔ نشه کښې یو د بل د سر د ښمنه وه او پهٔ
دې لاره کښې یې جنگونه ، مرګونه او راز ـ راز بې خوندۍ سره
کولې ؛ لهٔ دهٔ سره د جاگیر او سردارۍ مینه نهٔ وه ، دهٔ فقیري
او ملنګي خوښه کړې وه خو د ورونو خپل منځي شخړو او
دښمنیو ستوی نه کړی وُ او مجبوریدهٔ چې پهٔ خپله هم پهٔ
دې مخالفتونو کښې ګډ شي ؛ دهٔ د عزت او آبرو ډېر محقر
ژوند تر دې ږول بې عزتۍ او دنیاوي جاه و جلال غوره
وبالهٔ او لهٔ ناکسانو سره د او سېدو پر ځای یې بېکسۍ
او پردېسۍ ته تر جیح ورکړه ؛ دا مطلب پهٔ تشبیه او استعارهٔ .

ایما او اشاره د دهٔ په دیوان کښې ځای په ځای لولو :

هسې رنګ لهٔ دې عالمه تنها خوښ یم
چې مدام لکه وحشي پهٔ صحرا خوښ یم

تر هغه چې خشک طینت د ساحل وینم
لکه موج آواره لهٔ دریا خوښ یم

چې شاهٔ یې لهٔ لقې وږی مګس شي
کله زهٔ د هغهٔ خوان پهٔ سلا خوښ یم

چې پهٔ شان د آفتاب نهٔ ده ګرم رویه
ستا پهٔ سرکهٔ پهٔ سایه د هما خوښ یم

چې پهٔ قیدې د قفس کرم لکه زړکه
تر دا هسې خندا نهٔ پهٔ ژړا خوښ یم

کهٔ بیدار لکه تصویر لهٔ خوابه نهٔ شو
پهٔ دا حال لهٔ خپله بخته شیدا خوښ یم

+++

کهٔ فر د تاج و شکوه د تخت نهٔ وي
وقت مساعد او مدد د بخت نهٔ وي

واره روان دي ز ما پهٔ پوهه
غم به تر جاه و تر جلال سخت نهٔ وي

+++

زماني هغه کسان دي عزیز کړي
چې مرجع د شرارت دي هم مآب

د باد شاد تعظیم سایه د باد شاه نهٔ کا
استاده کهٔ یې عالم وي پهٔ جناب

+++

پرې زهیر لکه پهٔ خپلو بښو نهٔ یم
چې زما پهٔ سترګو اښنی چا قدم دی
چېرې نه چې یې د اجام پرېوزې لهٔ لاسه
عجب مست د جاد پهٔ میو شاد جم دی

+++

خندا رادروي پهٔ خان و بښک پورې
پهٔ ملک و مال و پهٔ خوان و دښک پورې

+++

مالیدلی دی نشیب پهٔ هر فراز کښې
اعتماد به شیدا څرنګ پهٔ فراز کړم

+++

زمانې خسان باد کړهٔ تر کسانو
چې وخس ته فروکړی دی سر آب

+++

شیدا ولې دې هر څهٔ ته لته ورکړه دا ځکه:
چې همت مې نهٔ کاوېر پهٔ هسکولو
لکه موج نهٔ کړمه یم لهٔ پرېوتلو

سوال مې خوې لۀ درافشانه ابره نۀ دی
صدف ورانه خپله خولۀ کړه پۀ غوښتلو

د آفتاب پۀ کمند نۀ خېژم آسمان ته
نۀ بدم بار لکه شبنم پۀ دوش د گلو

د آزادو لمن ککه پۀ خار نښلي
د نسیم غونډې گوزر کړم پۀ ځنګلو

+++

شیدا زیست پۀ تور و خاورو لکه مار کړه
مزعفر مۀ خوره د دون پۀ دسر لذیذ

+++

کۀ دې جام لکه حباب و نۀ نیو سپند ته
آفرین دې پۀ همت شیدا خسکه!

+++

کۀ وي خشک د دریاب لب لۀ تشنګی
شیدا کله به طلب کا جام لۀ جمه

+++

پۀ تما باج د سلیمان لکه مور نشته
پۀ یوه دانه قانع یم لۀ خرواره

+++

پۀ مسکه یې شیدا مۀ شه لقمه تره
چې جبین یې مدام ترش پۀ شان د دوغ وي

خپل مردن د تا مهجورو ته راحت دی
د سوزن نخم د لوی پرهار صحت دی

+++

خوابیده بخت مې قیام په خواب و نه لید
لکه ګل افتادګي زما قسمت دی
د صدا غوندې آزاد یم له حنجره
کله بند د تعلق زما عادت دی

د دهٔ دې عزت النفس او لوړ همت دهٔ ته د آوارګۍ او
لهٔ کوره د تللو لاره هواره کړه او د حباب لاره یې و نیوه:

پهٔ هر لور لکه حباب خانه بدوش یم
کهٔ شید اشو آواره لهٔ خان و مانه

+++

د سیلاب پهٔ دوش روان لکه حباب شوې
اې زما کوره تر ما آواره تر یې!

آواره لکه افتاب پهٔ بحر و بر یم
در ته څهٔ وایم چې څهٔ سوخته اختر یم

دهٔ د جاه او سرداری پهٔ لاره کښې د ښخړو او جګړو
کولو پر ځای د غریبۍ (پردیسۍ) عالم خوښ کړ او
دا نوی عالم یې پرې ښهٔ و بالهٔ:

چې سایه کاندې مدام په سرد ستړیو
شیدا شام د غریبۍ عجب عالم دی

شیدا که هر څو ستړی ستومانه او سرګردانه شو خو د پردیو په جهان کښې یې له چا نه ګیله نه کېده نو ځکه یې ځان ته تسلي ورکوله:

صورت رباط دی ته رهروی یې
له ستومانې تمام زګېروی یې
له چا نه مه کړه د تیمار طمعه
په دا عالم کښې شیدا پردی یې!

او د آوارګۍ د آزادۍ غمې یې تر هر جاګیر لوړ وبلله:

پکښې نشته ېې غمې د آزادۍ
که جاګیر دې سمه، سوات او باجوړ شي

ده د سردارۍ او خانۍ په سر په خپله کورنۍ کښې ډېرې خونړۍ پېښې لیدلې وې او په دې لاره کښې یې د خپلو نژدې خپلوانو وژل کتلي وو نو ویل یې:

چې نه شوې ترې په خون د خپلو
قربان ترهسې زیبا منګولو

او کله یې چې په دې لاره کښې د خپل شیرین ورور سر خوړلی نو د جاه مینه یې داسې غندلې ده:

لهٔ حب جاهه پهٔ زړهٔ کښې سوړ یم
د ملنګۍ وکار ته جوړ یم
سرې خوږلې د شیرین ورور دی
لهٔ زندګۍ تر حلقه موړ یم

۷ـ د شیدا لهٔ شاعرۍ څخه ښکاري چې دهٔ پهٔ روه کښې د مینې تارونه غزولي وو او خپله د مینې ښکلې دنیا یې آباده کړې وه او پهٔ همدې قمار کښې کوږ او ګالې ترې پاتې شو:

خان و مان خوږې د عشق پهٔ قمار بایله
د بازۍ نوبت پهٔ سر و دستار راغی

دی لهٔ خپل محبوب نه لرې شو خولهٔ یاده یې هېڅکله ونهٔ ووت او دهند پهٔ ښکلويې بدل نهٔ کړ:

تا د زړهٔ پهٔ صاف دوربین کښې همېش وینې
کهٔ هر څو یې لهٔ شیدا پهٔ هېواد دوره

بل قاصد نهٔ لري خو د نسیم پهٔ خولهٔ یې پوښتنه کوي:

ګلونه وکړه د روه پلوسې
کهٔ دا پیغام مې نسیمه یوسې
خوشبو پهٔ تا ده د وطن سیمه
پهٔ دا دعا یم چې تا زر دا اوسې

+++

پهٔ زړهٔ مې ګرځي د غرونو څوکې
حملې د بازو، د زرکو کوکې
ووایه! څهٔ کا؟ د روه نسیمه:
کیږا منګولې، زیبا مښوکې

دی چې پهٔ ټول هند ګرځېدلی د روه د ساده خوبانو
سارې یې نهٔ دی موندلی:

غره یې ځایه د هند سبزانې دي
غنج و ادا لرې کهٔ دلستانې دي
چې دلبرې کا بې تکلفه
د روه پهٔ ملک کښې ساده خوبانې دي

+++

زار شه ترې د و مره تاوسان، زانې
لکه دونو بې شماره پانې
د روه پهٔ سیمه دي طرفه دلبرې
نښته پهٔ هند کښې داسې سکانې

+++

د هند سبزو خوړلې پان وي
یې فوت یې دواړه لبان وي
زړګې یې ګرځي د روه پهٔ غرونو
ښائسته روغې پهٔ دغه شان وي

۸ ـ شیدا ته د وطن یادونه خوږه ده یادونه دي او ټول عمر يې د دې یادونو په یاد کښې شپې اوورځې تېرې کړې دي :

همېشه ژاړم په تېر صحبت پسې
په هغه مهر، په محبت پسې
لکه شیشه یم د ساعت گرد ه،
زړه مې دوه نیم شو په تېر ساعت پسې

+++

تل د روه آب و هوا، واوره، سپین یخ هم
باغ و راغ، دښت وکهسار طرفه شاداب
یادلرو په خپل خاطر په یادې پایه
شیدا وسپاره په قصر دا اطناب

د شیدا یو بیت ښيي چې ده کلکه اراده درلوده چې خپل وطن ته راستون شي او ټولو مشکلاتو او د جفا تیرو ته سینه سپر کړي :

خپل ناکام به دېوانه شیدا در بیایي
که دامن په کانو ډک لکه کهسار کړي

خو دا هيله يې د تل له پاره نهيله شوې، د روه دا مرور خانزاده روه ته بیا نه دی راغبرګ شوی او د فراق تریخ ترونديي تېر کړی دی :

زهٔ هسې نهٔ وایم چې فراق ووژلم
حیات خو شته دی ولې بې خونده دی

لیکن لهٔ دوه سره یې ادبي اړیکې تل پاتې شوې او وخت پهٔ وخت یې خپلې غزلې رالیږلې دي :

دا غزل د شیدا زړیوسه لهٔ هنده
چې یاران یې د وطن څرنګ جواب کا

۹ـ ددهٔ د دیوان لهٔ سریزې څخه ښکاري چې د شیدا ادبي اړیکې ددهٔ د عابد خان نوي ورور پهٔ واسطه ټینګې وې او همدا ورور یې دی چې دهٔ ته یې د محمدي صاحبزاده پیغام ور رسولی او دهغهٔ پهٔ غوښتنه یې خپل دیوان ور ته رالیږلی دی :

" ..... او سبب د تألیف داؤ چې لهٔ افواه د بعضې مترد دین مسموع شول چې مخدوم زاده د ولایت نژاد ، نتیجهٔ هدایت و ارشاد میا محمدی سلمه الله تعالی خلف الصدق د شیخ الاجل ولی الاکمل میا محمد عمر دامت برکاته طبع جیده لري او سلیقه د سخن شناسی کامله ، پهٔ دبدبه د سخن آرایی قصب السبق لهٔ همسرانو وړي - او پهٔ کوکبه دخوش سرایی مقدمة الجیش د همکارانو دی ، اکثر د دواوین د اسلاف و مضامین د حال رنګین وصاف یې فراهم کړي دي او پهٔ مطالعه یې تفریح د قلب و تشریح د صدر لقد وقت د مخدوم

زاده دي - اګر چې زړه يې په حسب د صورت په زيارت
مستعد نه يم اما په ولايت د قرينې معلوم شول چې دچا
له خولې يې زما د خيال و مقال په سمع شريف څه
رسېدلي دي :

مصرع: عالم همه افسانهٔ ما دارد و ما هيچ

بنا بر استيلاء شوق په تتبع د ورور محمد عابد خان
(طال الله عمره) و ماته امر په تدوين و ترسيل د اشعار
وکړ ، زه او ورور چې في الحقيقت په مفهوم د کنفس واحد
محقق يو هغه امر په مثابه د بالاصاله متخيل شه او امتثال
يې په مرتبه د لزوم متصور او هم خاطر د برادر عزيز و ګرامي
او پاس يې په داسبب الزم وانسب و لهذا په مدد د کار
کښې شوم مهما امکن مې خوض او جلدي په ترتيب د اشعار
کښې وکړه ، منقولات او مسودات متفرقه او مرقومات د منشآت
منظومه هر چې لاس ته راغله په قيد د رديف د دې جريدې
ثبت شول او په صفحه د دې مسطر کشيده چې قابل د ضبط و
ربط وو ، له هغه اشعارو چې هنوز نوحجت آموز د نومشقي
وم ؛ او بهره اندوز د تازه ګويي ، شايع و غير شايع هر چې
دي قليل بالمعنی و اقل باللفظ والمعنی په نسخه مذکوره کښې
مې داخل کړه :

مصرع : ګر قبول افتد زهي عز و شرف

.... او ترتیب د دې دیوان په شپږ دسن زر، سل، یو اتیا (۱۱۸۱) کښې د هجري واقع شو. تاریخ منظوم چې مشعر په انتساب د مؤلف دی. صورت د تقریر د اهسې بیا موند او هیئت د تعبیر یې ار تسام د ارنګ حاصل کړ:

قطعه: په دا باب وه استدعا د عزیزانو
چې مجموع شو حلاوت د مقالات
د تدوین تاریخ یې رای په داشان ووې
«د شیدا دیوان دی شهد او څه نبات»

(۴+۳۱۵+۷۱+۱۴+۳۰۹+۷+۸+۴۵۳ = ۱۱۸۱ هق)

۱۰- د شیدا په زمانه کښې یو بل کاظم نومی شاعر هم و چې په سرای کښې اوسېده، خټک او د همدې کورنۍ له حواشي و څخه و، په دې باب ده د دیوان په سریزه کښې وضاحت کړی دی:

«او شخص همنام زما ساکن د سرای چې اکوړی هم ورته وایي شی له حواشي د دې خاندان و. شاید چې په تأثیر د صحبت یې کم و بېش رویه د سخن ورته پېش نهاد د خاطر کړه او لسان د حال یې په قدر د استعداد په ایجاد د مضامین مترنم و، از انجمله څو غزل یې په غایت و نهایت شهرت کښې دي او په محافل و مجالس کښې زبان زد د غزلخوانو، له مشاهیرو د یو غزل یې دا مطلع دی:

و به مرم عالمه پهٔ ارمان د تورو زلفو
کله به راورسي درمان د تورو زلفو

لاکن نامبرده چندان معروف و مشهور نهٔ وُ ـ پهٔ واسطه د اشتراک اسمي هغه اشعار پهٔ نزد د کافه عامه مضاف و ماته دي ـ حال آنکه زماله اشعار نه زما اسم اصلاً مرح نهٔ دی دا معنی پهٔ تخلص مشرح شوې ده او هم معرفت د متکلم پهٔ سیاق د کلام متفرع دی او شناسائي د قایل پهٔ داب د قول کښې مودع دا نکته و کامل عیار ته د تمیز روښن ده او دقیقه د دې کار و دانش شعار ته مبرهن، چې دا اضافت و ماته خطا دی او نسبت بېجا :

چېرته سوزان اخگر او کجا فروزان اختر "

۱۱ـ د شیدا پهٔ دیوان کښې دوې مراثي قطعې راغلې چې د " بېنوا " پهٔ چاپ کښې " د پلار مرینه " تر عنوان لاندې خپرې شوې، د " همېش " پهٔ چاپ کښې لومړۍ قطعې ته " د پلار مرینه " او دوهمې قطعې ته " د مور مرینه " سرلیک ورکړل شوی دی، ډاکټر انوارالحق هم یوې ته د پلار مرینه او بلې ته د مور مرینه کښلې ده. " بېنوا " د لومړۍ قطعې د تاریخ ماده " میاشت د شعبان وه " ثبته کړې خو تاریخي ارزښت یې ۱۱۸۳ هـ ترې لاندې لیکلی دی، د دوهمې قطعې تاریخي مادې ته یې عدد نهٔ دی کښلی ؛

همېش مــاده "میاشت د شعبان ده" کښلي او عدد يې ۱۱۸۳ هـ ترې لا ندې لیکلی، د دوهمې قطعې تاریخي ماده يې "بهشت يې ځای شه دعا کوم زهٔ" لیکلی او د ۱۱۸۹ هـ کال عدد يې ورکړی دی، ډاکټر انوارالحق هم پهٔ همدې ترتیب دواړه مادې ثبتې کړې دي. خو د ښېنوا لهٔ ثبت نه ۱۱۸۹ هـ کال راوزي نه ۱۱۸۳ هـ او د همېش او انوارالحق د ثبت شوې مادې ارزښت بیا ۱۱۸۷ هـ کېږي نه ۱۱۸۳ هـ. کېدای شي پهٔ ځینې راوروسته خطي نسخو کښې هم څهٔ نا څهٔ ګونګتیا وې وي خو ما د موضوع د سپیناوي لهٔ پاره هغې نسخې ته چې د شیدا پهٔ ژوند پهٔ ۱۱۹۲ هـ کال پهٔ زنځیري لیکدود (د ختکو پهٔ خط) کښله شوې او د اسلامیه کالج پهٔ کتابتون کښې ساتله کېږي، مراجعه وکړه، هغلته د قطعو پهٔ عنوانونو کښې د پلار او مور نومونه قطعاً نشته او دواړو ته د "تاریخ"، "تاریخ" سرلیکونه ورکړل شوي، متن يې هم پهٔ دقیق ډول لیکل شوی چې زهٔ يې دلته کټ مټ رانقلوم څو پهٔ نتیجه ګیرۍ کښې لهٔ موږ سره مرسته وکړي:

## تاریخ

چه والد مې ارتحال وکړ          ځاي جنت شه دنیا زندان وه
تاریخ دا رنګ د رحلت وه وِ          خرد و ماته میاشت د شعبان وه

## تاریخ

غم به تر عمره د ولد کړم — خندا مې پر يشوه ژړا کوم زه

سال د رحلت يې له ماته واوره — بهشت يې ځای شه دعا کوم زه

(د قلمي نسخې ۱۸۱ مخ)

چې موږ يې د شعر د روان لوست په اساس په ننني ليكدود داسې ليکو او د تاریخ ماده او ارزښت يې استخراجوو:

چې والدې مې ارتحال وکړ — ځای يې جنت شه دنيا زندان وه

تاریخ (يې) دا رنګ د رحلت ووې — خرد وماته: "میاشت د شعبان وه"

(۷۵۱+۴+۴۲۳+۱۱=۱۱۸۹هـ)

غم به تر عمره د والدې کړم — خندا مې پرېښوه ژړا کوم زه

سال د رحلت يې لهٔ ماته واوره: — "بهشت ی ځای شه دعا کوم زه"

(۷۰۷+۱۰+۱۳+۵+۳۰+۷۵+۶۶+۱۲=۱۱۸۹هـ)

پهٔ دوهمه قطعه کښې کاتب د "والد" کلمې ته زېر ورکړی "والدِ" يې ليکلې او د شعر سکته ورکه شوې ده، کهٔ پهٔ لومړۍ قطعه کښې هم "والد" "والدې" ونهٔ لوستل شي مسری سکته کېږي او د لسو سېلابو پر ځای ۹ سېلابه راځي او هم څرنګه چې د دواړو قطعو د تاريخي مادې ارزښت ۱۱۸۹ هـ کال دی نو ځکه دواړې مرثيې ديوهٔ چا پهٔ مړينه دي او موږ دا ځکه د دهٔ مور ګڼو چې هم د والدې پهٔ کلمه د دواړو قطعو سکتې ورکېږي او هم کاتب پهٔ يوه قطعه کښې د "والدِ"

کلمه پهٔ زړه کښلي ده او بنايي پهٔ لومړي قطعه کښې زړه (ړ) ترې هېر شوی وي او بيا وروسته دا توري خبرې ددې زړه لهٔ هېرېدلو نه راولاړې شوې دي. داچې دادواړه قطعې ديوهٔ کس د وفات پهٔ باب دي لهٔ هغو دريو قطعو نه تاييدېږي چې تر همدې قطعو وړاندې او وروسته کښلې شوې او د" سرفراز خان" پهٔ مړينه کښې دي.

۱۲- د شيدا پهٔ ديوان کښې د دوو وروڼو پهٔ مړينه يوه مرثيه ده چې کامل صاحب دا د دهٔ وروڼه ګڼلي او ربښتين صاحب د دهٔ دوستان بللي خو د قطعې لهٔ پهٔ ځير لوستې نه برېښي چې دا مړهٔ کسان نهٔ د شيدا وروڼه وو نهٔ دوستان، بلکې دوی دواړه پهٔ خپل منځ کښې سره وروڼه وو چې د شيدا د استوګنې پهٔ محله کښې اوسېدل. دوی دواړه د يوې مياشتې پهٔ اوږدو کښې مړهٔ شوي او دې ترجيدی (د دوو وروڼو غبرګ مرګ) ټوله محله غمجنه کړې چې لهٔ دوي نه يو شيدا هم دی او پهٔ دې قطعه کښې يې د ټولو غم انځور کړی دی: "پهٔ هر چاؤ رحلت سخت د دواړو وروڼو نو ځکه يې د دهٔ ورو نه ځنځئ دوستان هم نشو بللی او دلته هيڅ داسې نخښه نشته چې دا وروڼه لهٔ شيدا سره منسوب کړي ځکه د "زما وروڼه" يا "وروڼه مې" او داسې نور ترو نکي ضماير نهٔ لري. بشپړه قطعه داده:

چې فتح الله او الله نور له دنیا ولاړل
په غمونو کښې يې فرق تر میاشتې کم
په هرچا ؤ رحلت سخت د دواړو ورونو
په فراق کښې يې نالان وو لوی وکم
تأمل يې په بیان د تاریخ وشه
راته ووې زړه: "آهاد قلوب غم"

(۷+۴+۱۳۸+۱۰۴۰=۱۱۸۹هـ)

۱۳- مونږ ولوستل چې شیدا په ۱۱۸۱هـ ق کال خپل دیوان بشپړ کړ نو آیا ددهٔ هغه وینا چې لهٔ ۱۱۸۱هـ ق کال نه د مړینې تروخته (۱۱۹۴هـ ق کال) پورې يې کړې ددهٔ د دیوان په نسخو کښې خوندي شوې کهٔ نه؟ ددې پوښتنې دځواب لهٔ پاره د شیدا د دیوان د څو زړو نسخو په یادونې سره موضوع سپینول غواړو:

الف، د شیدا د دیوان ډېره زړه تر لاسه شوې نسخه هغه نسخه ده چې په حاشیه کښې يې د ۱۱۸۷هـ ق کال د محرم ۱۳ نېټه لیک ده او ورسره په یوهٔ یادداشت کښې ویل شوي چې د دیوان د حاشیې غزلې دې راټولونکي کاتبان په متن کښې وکاږي، دا نسخه میجر راورتي په پښتوخوا کښې موندلې او اوس په برېټش موزیم کښې ساتله کېږي، میکنزي عقیده لري چې دا هغه نسخه ده چې میا محمد (؟) ته په

د ۱۱۸۱ هـ ق کال لیکله شوې او تر ۱۱۸۷ هـ کال پورې یې د شاعر پاتې وینا په حاشیه کښې کښله شوې ده ، خو دا دعوی یې بې سنده اټکل دی او په اصله نسخه کښې داسې کومه نخښه یا اشاره نشته .

ب) د شیدا د دیوان یوه بله زړه نسخه چې د تذکرهٔ کاملان رامپور مؤلف یې یادونه کړې او وایي چې د ریاست سوات په کتبخانه کښې ده د ۱۱۹۱ هـ کال د خلورمې خور (جمادی الثاني) د ۲۲ نېټې لیک ده چې فیض علي د قاسم بېګ زوی د اخون زاده میا غلام حیدر لهٔ پاره کښلې ده او په حاشیه یې د یوهٔ ورک نومي شاعر هغه قطعه ده چې د شیدا د مرګ تاریخ یې د "دل نظیر = ۱۱۹۰ هـ" په تاریخي ماده کښې پکښې ثبت کړی دی .

ج) د دهٔ د دیوان بله زړه نسخه د ۱۱۹۲ هـ ق کال د صفرې د ۱۷ نېټې لیک نسخه ده چې د دهٔ په ژوند په شاهجهان آباد کښې هم دې یاد شوي کاتب لیکلې :

" تمت تمام شد دیوان شیدا تصنیف خان والا شان مظهر لطف والاحسان حاتم زمان خانزاده کاظم خان دام اقباله بخط بندهٔ احقر العباد فیض علی ولد قاسم بېګ متوطن شاهجهان آباد بتاریخ هفدهم شهر سفر (کذا) بروز جمعه سن ۱۱۹۲ هجري ".

دا نسخه د پېښور د اسلامیه کالج په کتابتون کښې ساتله کېږي .

د) د شیدا د دیوان یوه بله زړه نسخه هم دهمدې کاتب په قلم ده چې د ۱۱۹۲ هـ ق کال د لومړي خور په ۲۷ نېټه يې د "خان صاحب اسلام خان" لۀ پاره په شاه جهان اباد کښې کښلې ده ، دا نسخه د کراچې په ملي موزيم کښې ساتله کېږي .

هـ) دا ددۀ په ژوند خطاطي شوې مهمې نسخې دي ، محترم همېش خلیل صاحب هم ددۀ د دیوان یوه داسې قلمي نسخه لیدلې چې په حاشیه کښې يې د همائه نا معلوم شاعر لۀ خوا د کاظم خان شیدا د وفات تاریخ دیوې قطعې په ترڅ کښې راغلی:

د شیدا په آشیانه کښې جهان تریخ شۀ
د کباب غوندې يې کون و مکان تریخ شۀ
درست بدن يې گویا زړۀ دی په سینه کښې
"بې نظیر" هم د کاظم د مرګ تاریخ شۀ
(۱۱۹۴هـ)

ښکاري داسې چې په قلمي نسخه کښې هم د تاریخ ماده او هم عدد دواړه لیک دي نو ځکه همېش صاحب ۱۱۹۴ هـ ق ترې لاندې کښلی او کۀ نه لۀ "بې نظیر" نه ۱۱۷۲ راوزي نه ۱۱۹۴ ، اروابناد کامل صاحب دې غلطۍ ته متوجه شوی او لیکلي يې دي چې

هم د تاریخ ماده او هم د دریمې مسرې مفهوم داځرګندوي چې د تاریخ ماده " بې نظیر " نه بلکې " دل نظیر " ده چې په دې توګه هم استخراج شوی تاریخ سمېږي او هم کاظم خان په ۱۱۷۲ هـ ق کال ژوندی و او تر ۱۱۹۴ هـ ق کال وروسته یې د ژوند نخښې چېرې نهٔ بنکاري نو غالباً چې لهٔ همېش صاحب نه به پهٔ جلدۍ کښې " دل نظیر "، "بې نظیر" شوی وي او د دې ملاتړ د تذکرهٔ کاملان رامپور د مؤلف نقل هم کوي ( وروسته راځي ) .

د کاظم خان شیدا د دیوان پهٔ دې نسخو کښې ددهٔ د وینا وروستي نمونې پهٔ حاشیو کښې کښلې شوې لکه پهٔ (الف) نسخه کښې چې تاسو ولوستل ، همدا راز د اسلامیه کالج نسخه (ج نسخه) چې مالیدلې پهٔ حاشیه کښې ځینې شعري ټوټې لرې لکه د میا عمر صاحب د مړینې دوې تاریخي قطعې چې د ۱۱۹۰هـ ق کال دي ، د نسخې پهٔ حاشیه کښې راغلي او هم ددهٔ د دیوان پهٔ نسخو کښې نورې تاریخي مادې هم شته ، یوه پکښې د حافظ رحمت خان د مړینې تاریخي ماده هم ده چې د دیوان پهٔ چاپ نو کښې یې د عباراتو ارزښت ۱۱۹۴ لیکل شوی لیکن د اسم نهٔ دی ځکه د حافظ رحمت خان د مړینې کال ۱۱۸۸ هـ ق دی .

پهٔ دې اساس د شیدا دیوان پهٔ ۱۱۸۱ هـ ق کال لومړی وار ددهٔ پهٔ لاس راغونډ شوی او بیا وخت پهٔ وخت پهٔ نورو

نقلونو کښې د دهٔ پاتې و ینا و رځای شوې چې تر ۱۱۹۰ هـ ق کال پورې يې د وينا نمونې پکښې ثابتې دي او بنايي ډېره لوې وينا يې ضايع شوې وي . (۱)

## دوهم : د تاریخ مرصع څو سندونه :

---

۱ ـ د افضل آباد باغ په ولې کښې ؤ او تاریخ مرصع يې ځای په ځای یاد وی چې څو نمونې يې دا دي :

د ۱۱۳۴ هـ ق کال په پېښو کښې د افضل آباد ذکر داسې کوي :

" نامدار چې هرگاه صوبه دار تر سينده پورې ووت له هغه طرفه يې خاطر جمع شهٔ ، که يې د سرور له مېلې سرای ته واستوله ، دی و باغ ته د افضل آباد راغی ، دوې ، درې شپې يې په باغ تېرې کړې ..... " ( تاریخ مرصع ۴۳۶ مخ ) .

افضل خان د خپلې يوې جگړې د پېښو په ترڅ کښې وايي :

..... په ولې ډېره وشوه ؛ کښې ، کاځرې ، لوبيا په افضل آباد کښې ډېر وو ..... " ( ۳۱۴ مخ ) .

يو بل ځای د ولې موقعيت چې افضل آباد هلته ؤ داسې ښکاره کندوي :

" ماله سرایه کوچ وکړ ، په ولۍ چې خلور کروهه له سرایه تفاوت لري ، خلور کروهه او درې کروهه له نو ښهره ډېره ونيوه ..... " ( ۳۹۲ مخ ) .

۲ ـ په تاریخ مرصع کښې د افضل خان د خانۍ موضوع :

دی تاته سرداري مادرکړه، تسلیمات مې په ځای راوړل چې
لهٔ خان علیین مکان نه رخصت شوم، ووتم دستار مې لهٔ
سره کوز کړ، په بغل کښې مې کېښېښود، د نیلاب په غاښي
چې خان جنت مکان پسې ورسېدلم، دی د غاښي په سر
ناست و، تماشايي د ملک کړه چې زهٔ یې ولیدلم تبسم یې
وفرمایه چې خان دې ولید، دستار مې لهٔ بغله وکښه هر
چې خان علیین مکان فرمایلي وو پهٔ عرض مې ورسول،
خوشال شهٔ، وې ویل: چې دا دستار تبرک دی کښې یې
ږدئ!» (۳۵۰ مخ).

اساساً د افضل خان سرداري پهٔ دې وخت کښې تهداب
گذاري کېږي چې غالباً د ۱۰۹۰ هق کال نه راوروسته پښتو
سره اړه لري خو دغه د پلار پهٔ خولهٔ دا محض د خپل نیکهٔ
یو تبرک بللی او رسمي ارزښت یې نهٔ دی ورکړی.

کله چې اشرف خان بندي شو، خوشال خان مأیوس
شو او د اشرف د راخلاصون پهٔ شرط یې سرداري بهرام
ته ورکړه، دا حالات افضل خان پهٔ تفصیل لیکلي چې دلته یې
لنډیز رااخلو:

«..... د امیر خان (د کابل صوبه دار) بادشاه ته د خان
جنت مکان شکوه و شکایت ډېر وکړی‌ښ. بادشاه اختیار ورکړ
چې تهٔ صوبه داري هر چې پوهېږې هغه کړه، د خان جنت

نښان (اشرف خان) حکم یې د قید راجه رام سنګه ته چې
په جمرود وهٔ راستوهٔ ، هغه زمیندار وهٔ ، قبول یې نهٔ
کړ چې دا کار د ما نهٔ دی ، بیا یې سید پهولا چې د
شهامت خان نوی ؤ ، په پېښاور کښې هغهٔ ته یې وکښل
چې په هر فن و فریب خان جنت نښان قید کا ، راجه رام
سنګه خان جنت مکان په ډېر خواهش جمرود ته و بالهٔ د دهٔ
په زړهٔ کښې هېڅ نهٔ وو ، د بادشاه په دولت خواهۍ مغرور
ورځې په سن زر دوه نوي (۱۰۹۲) آخر ثور یا اول جوزا
راجا رام سنګه یو سرو پای ، یو آس ، یوه د غاړې دهکدهکی
ورکړې نور یې رخصت کړ ، ور ته یې اشارت وکړ چې په
پېښاور مه ځه بېرون درومه ! آخر دی از راه دولت
خواهي ورغی د سید پهولا کره په خپله ورغی چې آشنا دې
دی وګورم نور به درومم . هغهٔ لهٔ خدای تعالیٰ همدا
غوښتل ور ته یې وویل چې ته کښېنه زهٔ کور ته لاړ شم
چې څهٔ طعام راستوم طعام و خوره هاله درومه . دی یې
کښېنا وهٔ نور یې خلق ترې چاپېر کړل . پروانه یې د امیرخان
ور ښکاره کړه ، په قید یې کړ ، الله داد خان خویشکي چې
په لنګرکوټ کښې وهٔ ، بهرام په غالی ډېر کښې وهٔ دواړه په
دا مصلحت شریک وو هغو ته یې وکښل چې دا هسې کار ما
وکړ او س معطل نهٔ او به تا سو سرای تر وردو مې ! ...»

"..... خان علیین مکان هم پهٔ هغه آوان پیر شوی وهٔ (کادي با دي به ور ته ویل) چې بهرام پیا ن وهٔ اوس خخو پوخ شوی دی یعنی شیرین شهٔ، خان دې هم د بهرام پهٔ کار راغب شي . مؤلف دکتاب (افضل خان) پهٔ هغه آوان د شپاړسو او ولسوکالو وهٔ - پهٔ داسن و سال چې داسې هیڅ تجربه دکارونو تر سره نهٔ وه تېره - د غاړې شول ، آخر هغه ورځ زهٔ لهٔ سرایه وبنکار ته وتلی وم نکه د زلمیو دستور دی هواهوس به ې کاوهٔ لهٔ ورایه سوورولید شهٔ - کومان و شهٔ چې څوک لهٔ رفقاوُ پسمانده راپسې راغی اما چې نیژدې راغی و پېژاند شهٔ چې هغه جلبدار دی چې لهٔ خابه سره پېښاور ته لاړ وهٔ معلوم شول چې څهٔ آسیب وخان ته ورسېد ، پهٔ مجرد دلیدو پوه و سرای ته راغلم - پهٔ سرای با ندې غوغاوه - هرڅوک پهٔ خپل مال پهٔ خپل ځان گرفتار وو . ملاحظه د خلقو داوه چې اوس به فوځ رایشي چې راغلم یو ملا عثمان خدای‌تعالی یې غریق د بحر رحمت کړه چې دی نمک حلال قدیمي د دوارو خانانو وهٔ ولاړ وهٔ خپل کور خپل مال یې هر څهٔ ترشا وهٔ راغلی مسلح پهٔ دروازه کېنې د محل ولاړ وهٔ چې زهٔ یې ولیدم راته یې وویل چې زر ننوزه د محل عالم و باسه ، د غرهٔ پهٔ لوري یې روان کړه - زهٔ ننوتم

دلاسه مې د محل د عالمو وکړه نور مې د محل عالم راروان
کړ د غرهٔ پهٔ لور ـ چې غرهٔ ته مې عالم ورساوهٔ نور
بیا رته راغلم ـ ملا عثمان پهٔ ځای ناست وهٔ ـ پس لهٔ
هغه مې حال مال و غرهٔ ته کړ ـ نور زهٔ ورغلم خان علیین
مکان ته ـ لوی خان پهٔ نظام پورو هٔ ـ عابد خان یې راسره
کړ، د سرور مېلې ته راغلم ـ خان علیین مکان هم راپسې
راغی جرګې معرکې ګډې شوې ـ بهرام د شیخ جیو زیارت
ته راغی ـ راوې بالهٔ، خان علیین مکان د تمامې قبیلې او د
اولس سره ورغی ـ زهٔ یکتنها پهٔ سرور مېله پاتو شوم
معرکه یې وکړه ـ بهرام مزدوهه هومره تزویر وکړ چې خان
یې فریفته کړ، پهٔ جرګه دا مقرر شول چې خان جنت مکان
چې قید دی مُغل دې یې خلاص کا ـ د بادشاه پهٔ حضور دې
اوسي منصب دې ورکا ـ دا زمان بهرام لکه ... د وړاندې
کړی دی هم دی دې اوسي ـ خاني یې پهٔ نامه د بهرام
کړه ـ پس لهٔ هغه لوی خان بیا د سرور مېلې ته راغی.
زهٔ چې پهٔ دا حال خبر شوم کوه مې پهٔ نظام پور وه روان
شوم ـ خان علیین مکان هم راپسې راغی، محال ترې
بولاق یې هم پهٔ بهرام وسپارل ـ د بهرام زوی یې ولاړه
ته واستوهٔ ـ څو مدت مې خان څخه پهٔ نظام پور کښې تېر
کړ ـ پهٔ امید د ملګیری چې راسره به مل شي ـ خپل

انتقام به واخلم - دا قصیده لوی خان بهرام ته پهٔ طریق د وصیت کښلې وه ، دی پرې غافل شه :

د مازیګهٔ لهٔ چانه روغ نهٔ دی بهرامه
لهٔ هرچا سره چې زیست دی لهٔ ناکامه
نوکري ، ځواني دا دواړه لکه بام دي
پهٔ پیری کښې لهٔ ما ولاړل دواړه بامه
اوس دا دواړه بامه ستادي ننداره کړه
غافل مهٔ شه یوزمان تر صبح و شامه
پهٔ دا اوس باندې چې ستا ګجاوه ایښې
رسوېږي چې پرې نهٔ وزې تر مقامه

- - - - - - - - - - - - - - - - - -

هرګاه نا امید شوم خبر راغی چې خان جنت مکان بادشاه پهٔ قلعه د ګوالیر محبوس کړ - نور سل کسه کم و بېش چې لهٔ قبیلو سره راسره وو پهٔ تاریخ دوولسم د سن مذکور (۱۰۹۲) پهٔ سلخ د رمضان پهٔ لښکره چې واړول چې ما بېن حد د مومن او د افریدیو دی .... ( بیا لهٔ بهرام سره جنګونه کوي او پهٔ نتیجه کښې جرګه راځي) ..... تمامې جرګې خان ته وویل چې هغه د تا زوی دادې نسی اختیار د تا کهٔ سرداري دهٔ ته ورکوې کهٔ هغهٔ ته - خان علیین مکان ورته پهٔ ځواب وویل چې د ما آزردګی دا ساعت د دواړو پهٔ سردارۍ

نهٔ ده پهٔ هغه جرګه چې څهٔ مقرر شوی وو د بهرام
سره چې خان جنت نشان چې پهٔ قيد دی خلاص دې شی دا
پهٔ کوم سبب پهٔ ګواليار کښې محبوس شهٔ؟ بويه لکه چې -
قرار داد شوی دی د ګواليار دې کوز شي پهٔ منصب دې
سرفراز شي - دويم دا چې محال تري بولاق دې و ما ته
راکړل شي او شل زره روپۍ مدد خرځ - معرکه پهٔ دا تمامه
شوه - چې لا شوې لره راغلو ما خان ته عرض وکړ چې
دا ساعت د ما فکر او سن و سال تقاضا د سردارۍ نهٔ
کا - دا هومره تلاش مې هم محض د پلار د خلاصې دی ،
ګنې د بهرام نه سرداري اخيستل د خدای تعالیٰ پهٔ کرم
و ما ته اسان دي - هر چې تا دا معرکه وکړه ډېر دې ښهٔ
وکړهٔ زهٔ هم پرې راضي شوم او س د ما دوخت تقاضا
داده چې د تا پهٔ خدمت دې کفش برداري کوزه برداري
کوم چې تربيت کېږم - اما يو شرط کړم تر هغه و خته پورې
چې څو خان د ما او د بهرام پهٔ ناستي راضي شوی نهٔ
دی ..... (تر يو شعر پښتو او سردارانه جنګونو کولو
ورو سته ليکي) ..... خان عليين مکان لهٔ هغې جرګې بيا
راغی نظام پور ته - ما ته يې و فرمايل چې څو نصو روپۍ
درې مياشتې مونږ د تاد خرځ د پاره د بهرام سره مقررې
کړې - تهٔ خپل سړي ورستوه خېر آباد ته چې اخلي يې .

ماورته ووېچې د ما د تا قرارداد سره صمصره وهٔ چې خو تهٔ د ما او بهرام سره پهٔ اتفاق راضي شوې نهٔ يې ، اوس چې تا او دهٔ سره اتفاق وکړ د ما پهٔ اتفاق هم د بهرام سره راضي شوې اوس د ما د تا سره جدائي ده ؛

هٰذَا فِرَاقُ بَيْنِيْ وَبَيْنِكَ

نو راې اميرخان ته وکيل ، اميرخان ډېره ارزو زما د بللو کوله امازهٔ ورنهٔ رغلم ، چې د ما خط ورغی پهٔ هغه زمان يې پروانه او پخله وکيسه . د ظفرخان نيايه پهٔ لاس پهٔ معرفت د ملک محمد ارباب و رائےمان سنګه ديوان د استوله نهٔ هم وروان شوم چې پهٔ ګلوزيو ورغلم ازادخان نيوی، ملک محمد ارباب او غيره کتخدايان پهٔ موجب د اميرخان واستقبال ته راغلل پېښور له ورغلم رائےمان سنګه ديوان يې د اميرخان وليد . آس او سروپای يې د اميرخان لهٔ لوريه راکړ . ممريز خان جماعه دارېې د اميرخان راسره کړ . دکړېو پهٔ لارېې کابل له ورغلم . د اميرخان دکوچ وخت وهٔ جلال آباد ته . يوه شپه مې پهٔ کابل وشوه . اميرخان ځواب د استوهٔ چې صبا به د ما ډېره پهٔ تکراي وي . ساعت د تا د ملازمت هم سبا دی ور سره راوعدتم . پهٔ تکرای دی ډېره شهٔ لا پهٔ ولاړه مې ملازمت وکړ . چې نهٔ يې وطن لم راته يې ووېل چې پهٔ ځان د بهرام بلا راغی . نو ورسره تر جلال آباده راغلم،

ډېره مهرباني يې کوله ، د ماله خدمته هم رضا مند شهٔ ،
دوه صدو پنجاهي منصب يې د ما تجويز کړ او هغه براډي چې
د ما سره وه د بهرام نه يې عليحده کړه نور يې سرو پای
او کمر خنجر راکړه زهٔ يې پېښاور ته رخصت کړم ..... هغه
وخت چې زهٔ د خان عليين مکانه خاطر آزرده مغل له راغلم
متعلقات په نظام پور وو - خان عليين مکان از راه اعتراض
راروان کړه چيناکړ ته راغلل ......(تر دې وروسته لهٔ بهرام
نه د خلکو خوابدګي او ددهٔ ظلمونه ښيي او بيا د خان په باب د خلکو
پرېکړه بيانوي ) ..... اما اولس په جمع دلهٔ بهرام) څښتن
راوجاروت - معرکه يې وکړه چې زموږ سردار مؤلف د کتاب
( افضل خان) دی ، بهرام چا سردار کړی دی - زهٔ په پېښاور
کښې وم چې سړي د اولس راغلهٔ چې رادرومه خپله له د مغل
محتاجي کړې ..... نور زهٔ له پېښاوره چيناکړ ته راغلم - د
اولس کدخدايان واړه رالره راغلل چې موږ د بهرام سره اوس
پهٔ بدو برهنه شو و دوزګار مو سره غلط شهٔ پاڅه
راځه - پهٔ بهرام هم اور ولګيد ، نو مکه پرې تود شوه !
(لهٔ ۴۹۲ څخه تر ۵۰۰ مخ پورې لنډيز) .

کيسه اوږده ده خو نتيجه يې داده چې د ۱۰۹۲ - ۱۰۹۳ کلو په
پېر ستون کښې د اشرف خان تر بند وروسته افضل خان
رسماً سرداري په لاس کښې ونيوه او لهٔ همدې وخت نه ددهٔ

د سرداری دوره حسابله کېږي .

۳- په تاریخ مرصع کښې دافضل خان دکورهواو زامنو یاد :

« نقل دی له نېک بخت چې خانه زاد قدیم الخدمت وه او نهایت سخي او په طاعت په عبادت به دالله تعالی شب وروز مشغوله وه ، په هر ملک په هر بلاد چې څوک ملا درویش وه همه ددې وظیفه خوار وو - ډېره فقیر دوسته وه ، زه یې یوه ورځ فقیر جمیل بېګ لره ور ستولم چې د مؤلف د فرزند د پاره دعا وکا ، زه ور غلم په ډېر الحاح مې څښې دعاوغوښته سر یې یو زمان په مراقبه کړه - راته یې وویل چې نېک بخته ته یو فرزند غواړې ما فی الحال دوه ولیدل نور به هم پسې وشي ، په لږ مدت کښې له بي بي آیسې چې کور د مؤلف دی دوه فرزندان محمد علي او محمد حسن څښې پیدا شول او امید د نورو شته . او د بل کور د پاره یې مکرر په ډېر الحاح ور ستولم چې هغه د بي بي ورېره وه اما هېڅ ځواب یې رانه کړ- د هغې هېڅ ونه شول . » (۶۰۳ مخ)

د ۱۱۱۷ هـ ق کال په پېښو کښې لیکي :

- « یوسر و پای یې محمد سعید د ما فرزندته ورکړ » (۳۸۱ مخ).

د ۱۱۱۹ هـ ق کال په پېښو کښې لیکي :

- « فرزندی سیف الله خان مې دلاچې فوجدار کړه » (۳۸۵ مخ)

- « هرکاه چې فرزندي سیف الله خان خبر شه له لاچې پسې راغی » (۳۸۵ مخ)

د ۱۱۲۵ هـ ق کال په پېښو کښې لیکي :

— « د محبت لور مې محمد علي خان ته غوښتې وه » (۴۰۸ مخ).

د ۱۱۲۶ هـ ق کال په پېښو کښې لیکي :

— « ما د خپلو وابسته ؤ سره مستحکمه قلعه په نظام پور سازه کړه فرزندي سیف خان مې جانشین کړ » (۴۱۱ مخ).

د ۱۱۲۷ هـ ق کال په پېښو کښې لیکي :

— « ما فرزندي محمد علي خان د بازو نر سره په استقبال حسن ابدال ته ور ستولی ؤ » (۴۱۳ مخ).

— « په وخت د رخصت یې خلعت فرزندي محمد علي خان ته ورکړهٔ » (۴۱۳ مخ).

د ۱۱۲۹ هـ ق کال پېښې :

— « فرزندي سعید خان فوځدار دلاچي وهٔ » (۴۱۳ مخ).

— « په کار د خېر د محمد علي خان چې نسبت یې د محبت د شهباز خان د زوی کړه وهٔ . سرای ته د قبایلو سره راغلي وم، چې داخبر داور سپدهٔ زر مې کار خېر پیوند کړ ... سبا مې محمد علي خان د فوځ سره روان کړ » (۴۱۴ مخ).

د ۱۱۳۰ هـ ق کال په پېښو کښې لیکي :

— « محمد علي خان په سن د پانزده سالګی، محمد حسن د چارده سالګی، اسد الله خان د یازده سالګي، محمد اشرف د نه سالګي په رکاب کښې راسره حاضر وو . » (۴۱۷ مخ).

د ۱۱۳۰ کال د ذی الحجې اتم :

ـ « په وخت د یورش والده د محمد علي خان په حال د نزع وه ، حضور د کور جنازې ته یې معطل نه شوم » ( ۴۱۶ مخ ) .

د ۱۱۳۰ هـ ق کال د لوی اختر ورځ :

ـ « صدرحمت په محمد علي خان شه ، بنه تر دد بهادري یې وکړه ، تر واړو سورو په سرهمرکاب همعنان ترشیدو پورې په نامدار پسې ته ، سواره یې پریستل په داسې د محمد علي خان چې د ښځلسو کالو پوره شوی وه او هم والده یې په د : کال هغه شپه چې ماله جینا کوره کوچ وکړ وفات شوه . » ( ۴۱۸ مخ ) .

ـ « په سبا فرزندي سعید خان چې فوځدار دلاچې وه ، ترې ( .... ) ق سواره پیاده ورسره سرای ته راغی . » ( ۴۱۸ مخ ) .

د ۱۱۳۵ هـ ق کال د رجب ۱۷ نېټه :

ـ « .... او د برخوردار محمد اشرف د بنا دې کار هم د رپېښ ؤ . » ( ۴۴۱ مخ ) .

ـ « په تاریخ د دوولسم د رجب سنه ترسل پنځه د یرش کار د برخوردار د بنادې په اتمام ورسېد » ( ۴۴۲ مخ ) .

ـ « برخوردار محمد حسن خان چې د خیرآباد فوځدار وه ..... » ( ۴۴۴ مخ ) .

ـ « ماهم په حسب قرار داد برخوردار اسدالله خان بیا فوځدارۍ د لاچې مقرر کړ . » ( ۴۴۴ مخ ) . ( ۲ )

## دریم: د سکندر خان خټک دویناخوښندونه:

۱ـ سکندر خان خټک دافضل آباد د باغ په ستاینه کښې یوه ۸۴ بیتیزه قصیده لري چې ددې باغ هر اړخیزه معرفي يې پکښې کړې او ددې باغ په وسعت او فسحت غږېدلی دی، موږ يې دلته ددې باغ د پېژندنې لهٔ پاره څو بیتونه راخیستو:

[۱] کهٔ رضوان يې لهٔ نشاطه خبردار کا
دا مکان به د بهښته سره شمار کا

[۷] ننه، پاس لکه ښیښه هسې صفا دی
د ذرهٔ حال وهر سړي وته آشکار کا

[۸] تهٔ به وايې د بهار تنا غورا شوه
اوازونه چې پهٔ هر لوري آبشار کا

[۹] تحفه نهرې پهٔ منځ کښې دي راغلې
چنار، سروه هم عجب پرې نمودار کا

[۱۱] بې حسابه فوارې پکښې ولاړې
پهٔ یوځل د پشه کال غوندې امطار کا

[۱۷] پهٔ محل کښې د تصویر گلونه واړه
پهٔ سرې باندې اهار لکه بهار کا

[۲۳] کهٔ گلاب دی، کهٔ چنبه، کهٔ نور گلونه
پهٔ خپل قدر معطر کوڅه دیار کا

[۲۸] د هر لور جونه زلمي راځي په سېل
خپاې - خپلې مېوې واړه وار په وار کا

[۳۱] د حاسد په خوله دې خاورې د حسد شي
که تر دهٔ نه به تعریف د «شاله مار» کا

[۳۵] چې ناګاهه په ګلونو کښې بنکاره شي
توري سترګې د هوسۍ بلا ناتار کا

[۳۶] د کشمیر، د کابل کله دا صفت دی
چې ملوک پکښې هر لور د بازو ښکار کا

[۵۰] په بهار یې په اطراف لس دوولس کروهه
په انواع - انواع ګلونه هلک ښکار کا

[۸۰] اشرف خان به په دا باغ په جهان یاد وي
سکندر هم کوندې څوک یاد په خپل اشعار کا

۲- کله چې اشرف خان په زندان کښې لوېږي دده ورور سکندر خان خټک یو منظوم لیک ورا ستوي او دکورکورنۍ او خپلوانو حالات ورته لیکي، په همدې لیک کښې د افضل خان کم سني او په عین حال کښې تدبیر هم ورته ستایي، دا لیک د ۱۰۹۳ هق کال د محرم په خلورمه نېټه کښل شوی او دا وخت دده د سرداری او مشری تصدیق کوی چې دلته یې له موضوع سره مربوط بیتونه رااخلو:

همنشین دې هملګي حرامخوارهٔ وو

افضل خان نهٔ وُ خبر پهٔ عمر کم وُ

پهٔ جفا واړه ودهٔ وته قفا کړه

پهٔ تنها صورت د خدای باندې کرم وُ

هېڅ کمی یې دانصاف مصاف ونهٔ کړ

مدعي یې وُ پهٔ غم دوستي یې بې غم وُ

آفرین باندې مغل پښتانهٔ وائي

منتشر یې نوم د توریې پهٔ عالم وُ

+ + +

افضل خان دشلوکم زیات کهٔ (پهٔ) سن دی

پهٔ حکمت پهٔ مصلحت لکه کهن دی

زور قوت یې دلښکر واړه لیدهٔ شي

دخورشید غوندې یو اَس یوېې جوشن دی

پهٔ اعدایې هره ورځ ناره د جنګ وي

لهٔ هراسه یې آرام نهٔ شي غمجن دی

پهٔ غلیم بهارستان دهٔ خارستان کړ

پهٔ معنیٰ موږ ته توتکی لکه ګلشن دی

عندلیب غوندې خبر د هر ګل اخلي

دلاسا دلوی هلک کا پرې مئین دی

شفقت ، احسان ، حیالري بې حده

د مړدی شهرت يې هم په مرد وزن دی
د فلک دشوارې وارې ورې آسانې
يا تورغر دی په همت کښې يا آهن دی
ښکار د غشي ، دټوپک ، دباز ، شاهين کا
استاد شوی د هر علم ، د هر فن دی
ښه سوار لري ، ښه خط ، ښه يې انشاء ده
الغرض چې په هر فن کښی مبرهن دی
که تر تا رسېدی نه شي ګیله مه کړه
چې ياد شوی په هغه جهان دکن دی

+ + +

«کوهر» دړ دی د اخلاص په ښه صدف کښې
هره چار د افضل خان په حکم وک کا
په تحقيق لروبر نه کا څنې غاړه
«افضلخان» يې په مړې که ګزلک کا
«بهادرخان» «صيف خان» لمسي دې لکه ګل دي
خدای دې دواړه خانصاحب ته مبارک کا

+ + +

«خالد خان» د افضل خان جای نشين وُ
د ډېر احسان ورسره شوی وُ خو بيا لاړ (۴)

+ + +

## شلورم: د "تذکرهٔ انتخاب یادګار" سندونه:

---

داردو نامتو لیکوال او شاعر میر مینایي د کاظم خان شیدا په باب لیکي:

"شیدا کاظم خان، خانزاده قوم ختک، دپښتونخواسړی، په پرهېزګارۍ او خدای ترسۍ کښې بې مثاله ؤ، پرښته خو یه بنیادم ؤ. اروېدل شوي دي چې دوی یوه جینۍ روږلې وه چې هغه هوښیاره او لویه شوه نو خلقو وغوښتل چې دوي یې په نکاح کړي، دوي قبوله نهٔ کړه، د هغې جینۍ هم د دوی د شمتیا د نظر د وړاندې داخوښه وه، یوه ورځ یې ځان جوړ کړ او د دوی د خلوت ځای ته ورلړه ورغله، دوی یې په غرض پوه شول او خپله کوته یې د شمعې په لمبه کښېښوده چې په سوځېدلو شوه نو لاس یې راکښلو - هغې وپوښتل چې دا څهٔ خبره ده؟ دوی ورته وفرمایل چې دې از ما ییبت له مې په شمعې لاس ایښی وهٔ چې کورم چې لهٔ ما د دغه اور زغم دلې شي کهٔ نه؟ نو په هېڅ طور زغم ونهٔ شو او هر کله چې د دغه اور د تاو زغم ونهٔ شو نو د دوزخ د اور چې څو چنده لهٔ دغه اوره زیات دی به څرنګ زغمونکی شم - هم هغه ورځ یې یوهٔ نېک سړي ته نکاح کړه - پاکي ده الله لره داسې سپېڅلي سړي وي."

« د جناب مستطاب نواب محمد فیض‌الله خان بهادر عرش منزل په عهد کښې یې دلته په ډېر شان شوکت د میاشتې په زر روپو نوکري کوله، په ورکړه بخښنه کښې تر لرې لرې مشهور و، د دوي مشران هم د شوکت او دولت او نغارې څښتنان وو.»

« شعر به یې اکثر په پښتو ژبه کښې فرمایلو کله کله به یې په فارسي کښې هم طبیعت وآزمویلو «هی هی افغان» د حضرت مؤید من‌الله جناب علي محمد خان د مړینې تاریخ هم د دوی د اوچت فکر نتیجه ده ـ او نادر شاه چې هندوستان په زور زیاتي ونیولو «غم عام» یې د دغه نیولو تاریخ وویلو...»(۴)

پنځم: د «تذکرهٔ کاملان رامپور» سندونه:

---

حافظ احمد علي شوق رامپوري په تذکرهٔ کاملان رامپور کښې د زړو او باوري سندونو په بنا د کاظم خان شیدا په باب په زړهٔ پورې معلومات لري چې دلته یې مربوط مطالب چې لومړی لاس مواد یې بللای شو، رااخلو:

د تذکرهٔ تکملة‌الشعراء څښتن لیکي: خان عالیشان چې د پښتون ختک قام رئیس دی، د فرشتې په څېر بنیادم دی، زاهد، پرهېزګار، متشرع، ډېره اوچته حوصله لرونکی، نازک دماغه او د دربار ناوبت څښتن دی، ډېر زغموال کوونکی

د زغم او درناوي غر دی ، په انساني صفتونو پسوللی ، دهنر او قابلیت او د سخندانۍ تولنه او دفضل او کمال خښتن ، خوش مقاله ، نازک خیاله او زړه ته ورپورې د تازه معنومندونکو او په نزاکت پورو ، زړه ته ورپورې او د هسکو مضمونونو لټوونکی دی - تر دغه وخته د پښتونخوا په پښتنو کښې داسې خوږه وینا کوونکی سړی نه پېدا شوی دی او نه به پېدا شي ، لا د ایران په باب هم بحث کېدای شي ، په نازکخیالۍ او ادا بندۍ کښې د سلیم ، شوکت بخارايي ، صائب تبریزي ، ناصر سرهندي او غني کشمیري په شان یکتا دی . په پښتو ژبه کښې د دوی دیوان دخوش خیالۍ او سخندانۍ له رویه مشهور دی ، کله - کله به یې په فارسۍ کښې هم غزل ویلو د مړینې یې یوځو کالونه کېږي . د راجه نول رای ناظم اوودهٔ د قتل تاریخ یې داسې نظم کړی دی ...... د نواب سید علي محمد خان صاحب تاریخ یې هی هی افغان (۱۱۵۷هـق) ویلی دی ، په هندوستان یې د نادر شاه د حملې تاریخ دغم عام (۱۱۵۱هـق) نه راایستلی دی ، دکمایون د غزهٔ په لمنه کښې دچلیکا په ځنګل کښې د محصورېدلو تاریخ یې د فساد عظیم (۱۱۶۵ هـق) د تورېو نه راایستلی دی . د شیدا د دیوان دوه نسخې د ریاست سوات په کتبخانه کښې شته دي .

یوه نسخه په غټ قلم لیکلې شوې ، څلور سوه شپاړس

محونه لري ، په پای کښې يې دا عبارت دی ." تمام شد دیوان شیدا تصنیف خان عالیشان مظهر لطف والاحسان حاتم زمان خانزاده کاظم خان سلمه الرحمن بتاریخ بیست و دویم شهر جمادی الثاني ١١٩١ه بخط بنده احقر العباد فیض علي ولد قاسم بیگ بپاس خاطر اخون زاده میان غلام حیدر سلمه الله تحریر یافت ."

مؤلف د دهٔ دیوان را پېژني او بیا د وفات قطعې تری رااخلي چې د يوې عنوان دی :

تاریخ د وفات د دریو دوستانو او دیو زوی :

آه بدو ماه سه مشفق مرا
چارمیش قرهٔ عینم بدان
زان دو شهید و دو سعید ازل
طبل رحیلی زده سوی جنان
سال وصال همه گردد جلی
بود غم یی هم آه - خوان هم
(١١٦١هق)

...... د دې دیوان په سر پاڼې چا کابلي د شیدا خان د وفات دا تاریخ لیکلی دی :

د شیدا په آشیان جهان تریخ شه
د کباب غوندې یې کون و مکان سیخ شه

درست بدن يې ګويا زړۀ وُ پۀ سينې کښې
دل نظير د کاظم خان د مرګ تاريخ شه

لۀ " دل نظير" نه (۱۱۹۴ هق) جوړيږي. غالباً همدا يې تاريخ وفات دی ، د دوی پۀ باره کښې لۀ کومه کتابه يا زباني روايته نور حال معلوم نۀ شه ". (۵)

## شپږم : د خانزاده شېرعليخان مجمع الانساب :

---

د کاظم خان د کورنۍ د غوټې پرانستلو پۀ برخه کښې چې کوم سند تر لاسه شوی هغه د خانزاده شېرعليخان " مجمع الانساب " دی . شېرعليخان د خوشال خان خټک د خانې د کورنۍ يو فاضل شاعر او ليکوال غړی دی چې د ۱۲۵۸ هق کال د ذی الحجې پۀ ۲۰ نېټه زېږېدلی او پۀ ۱۳۲۳ هق کال د ٦۴ کلنۍ پۀ عمر وفات شوی دی ، د شاهداد خان ، هغه د سرور خان ، هغه د سردار خان ، هغه د شهباز خان ، هغه د سعادت خان ، هغه د افضل خان ، هغه د اشرف خان او هغه د خوشال خان خټک زوی وُ .

شېرعليخان د خپل ستر نيکۀ افضل خان پۀ پېروی پۀ پښتو ، فارسي او اردو ژبو د مجمع الانساب پۀ نامه يو کتاب کښلی او د خټکو د خانې د کورنۍ شجرې او حالات يې پکښې راوړي ، دی د خپل کتاب پۀ سريزه کښې ليکي :

«وائي دا بندهٔ نادان مملو په عصيان يعني خانزاده شيرعليخان په خدمت د هوښيارانو روښن دلانو کښې په ډېر تواضع او نياز سره عرض د عاجزۍ په دا مضمون لري چې هرګاه په مطالعه دکتاب د تواريخ مرصع په زيور د معنیٰ آراسته او ښائسته دی او په مجلس د تاريخ دانو خلقو کښې دګلو دسته دی. دی په معنیٰ کښې د دروکان دی او مصنف ددهٔ زمونږ نيکه محمد افضل خان دی چې دهٔ خپل انساب يعنی واړه نسب نامه په ښه تفصيل سره لهٔ ابتدا د ملک اکوړ خان نه چې سرخيل زمونږ د خاندان دی تر خپلو فرزندانو پورې بيان کړې ده په هسې عنوان سره چې بيا ورته حاجت د تقرير او تحرير نشته، لهٔ هغه مدت نه او س زمونږ تر وخته پورې ډېره زمانه تېره شوې ده او په دا منځ کښې زمونږ په خاندان کښې ډېر ښه علم دان او قابل - قابل کسان په خپل - خپل وار سره هغه جهان ته لاړ شوي دي ليکن چا دهغو نه په جمع کولو ددې تقرير او په ښکلو ددې تحرير سعی کوښښ نهٔ دی کړی يعنی دا نسب نامه چې او س کښی نشي هيڅ ليکلې نهٔ ده دا خو يو دا سبب معلومېږي چې په هغه وخت کښې قسم قسم حادثات او دنګا رنګ تکليفات په منځ ددوی کښې راغلي وو. په سبب د هغو يوه کم فرصتي شوه، بله سراسر بې رغبتي شوه،

اوس چې فضل د پاک سبحان دی او بیا کرم د نبي آخر زمان دی . نور ځکه زموږ حاکم جناب نواب صاحب بهادر خواجه محمد خان دی چې په واسطه ددوی سره زموږ خاندان واړه برقرار دی ، چنانچه هر یو کس له موږ په خواهش د خپل روزگار دی . هرگاه چې رغبت د بنده په لوستلو د کتابونو او په لیدلو د تاریخونو او په جمع کولو د دا رنګ حالونو له هرڅهٔ زیات وه . پس له دا سبب په ډېر کوښښ او محنت سره دا نسب نامه جمع کړی شوه په هسې مضمون سره چې انشاءالله له ابتداء د خان مرحوم چې مصنف د کتاب دی تر موږ پورې چې اووه اته پېړۍ تېرې دي هیڅ قدر به پکښې تغیر او نقصان راغلی نهٔ وي او که وي هم شاید ، ځکه چې بنده مرکب له سهوې او نسیان دی . اوس زموږ نوبت په سر راغلی دی که موږ به وو یقین دی چې پس له موږه به دا کښل په طور د یاد داشت باقي پاتې شي ....(د مجمع الانساب دیباچه) .

خانزاده شېرعلیخان پر نسب نامه سربېره نور ډېر تصنیفونه هم درلودل او په نظم او نثر دواړو یې کښل کول .

د شېرعلیخان په نسب نامه کښې زموږ له موضوع سره مربوط دالاندې مطالب تر لاسه کېږي :

۱- په هغه جدول کښې چې دخټکو د رئیسانو فهرست

لۀ ملک آکوړ خان سره بیا ترخپله وخته لیکي د محمد افضل خان په برخه کښې وايي:

« د حکومت د پیل کال ۱۰۹۳ - د حکومت پای ۱۱۵۴ هق . د حکومت دوره ٦١ کاله ، د اورنګ زیب او بهادرشاه زمانه»

۲- د افضل خان خټک د زامنو په باب لیکي:

« محمد افضل خان چې زموږ په خاندان کښې په خان مرحوم سره مشهور معلوم دی و دوی ته خداوند تعالی اتۀ فرزندان عنایت کړي وو چنانچه سعدالله خان ، کاظم خان لۀ یوې مور د ، محمد علیخان ، حسن علیخان لۀ بلې موره ، عبید خان ، محمد عماد خان لۀ بلې مور . محمد اشرف خان لۀ بیلې موره . محمد سعید خان لۀ بیلې موره . په دوی کښې سعدالله خان مشر وۀ او س په شهید خان سره مشهور دی څکه چې د لبنګرخان د لاسه چې زوی د محمد علیخان وۀ او ددۀ وراره وۀ ، په سرای کښې شهید شوی دی »

۳- د کتاب په اردو برخه کښې د افضل خان د ریاست او سردارۍ په باب لیکي:

« کله چې اشرف خان بندي شو (ددۀ ورور بهرام د پلرنی ریاست دعوی وکړه) خو خوشحال خان د مشرۍ پګړۍ خپل نمسي افضل خان ته ور په سر کړه ..... محمد افضل خان یو پوه سړی وُ ، ډېر کتابونه یې لیکلي وو - دۀ ٦١ کاله مستقل

حکومت و چلاوهٔ ، اتهٔ زامن يې درلودل چې دادوه يې ديادولو وړ دي سعدالله خان او محمد عليخان ، سعدالله خان (اسدالله خان) لهٔ خپل پلار نه خپه شو . د څو ملا زمانو سره تيرى ته ولاړ هلته يې د تيرى رياست جوړ کړ . د محمدافضل خان د وفات پوخ تاريخ څرګند نهٔ دى .»

۴ـ نسب نامه د اسدالله خان د حکومت دوره لهٔ ۱۱۵۴ تر ۱۱۸۰ هـ ق پورې ۲۷ کاله شمېرې چې د نادرشاه او احمدشاه دوره ده (۶).

## پاليکونه:

(۱) پهٔ دې برخه کښې دکاظم خان شيدا دوينا نمونې لهٔ کابل چاپ ديوان څخه چې پهٔ ۱۳۳۳ هـ ش کال پښتو ټولنې چاپ کړى ، رااخيستل شوې دي . دتاريخي مادو د تثبيت لهٔ پاره د اسلاميه کالج خطي نسخه لوستله شوې او د کاظم خان شيدا د ديوان د خطي نسخو پهٔ باب معلومات زما لهٔ «پښتو نسخې ـ د پښتو خوا او دنيا پهٔ کتابتونونو کښې» قلمي اثر نه اخيستل شوي دي .

(۲) د تاريخ مرصع اقتباسونه د اروابناد استاد کامل مومند لهٔ چاپ متن څخه شوي دي .

(۳) د سکندر خان خټک د دې قصيدې او ترجيع بند بشپړ متنونه د دهٔ د ديوان پهٔ هغه قلمي نسخه کښې دى

چې د پښتو اکیډمي پېښور په کتابتون کښې ساتله کېږي .
ما د دواړو بشپړ متنونه په دوهم ټوک ادبي ستوري
کښې راوړي دي ، د ۱۳۵۹ کال د کابل چاپ ۳۳۵-۳۶۲ مخونه.
(۴) د دې کتاب اقتباس د اروا ښاد استاد کامل مومند
لهٔ » ۱۳۶۰ « نومي کتاب نه شوی دی، ۲۰۶-۲۰۸ مخونه .
(۵) دا متن هم د اروا ښاد استاد کامل مومند لهٔ یاد
شوي کتاب نه اخیستل شوي ، ۲۰۹-۲۱۲ - ۲۱۵ - ۲۱۹ مخونه .
(۶) د دې نسب نامې د قلمي نسخې فوټو سټېټ محترم پردل
خان خټک راسپارلې وُ چې قلباً مننه ترې کوم .



# څلورم څپرکی

# ترلاسه شوې نتيجه

د استفاق طمعه به څهٔ کړې لهٔ اخوانه
نتيجه يې ورکېدهٔ دي لهٔ کنعانه

د تېرو بحثو، ابخلو او روايتونو، شکونو او تېروتو د سا... و او لا سوندونو د څېړنې، تنقيد او جاج په نتيجه کښې د کاظم خان شيدا د ژوند اړ اړخه په لنډه توګه داسې جوړ او ترتيب شو:

د شيدا نوم « محمد کاظم » (۱) تخلص « شيدا » (۲) پهٔ قام « افغان ختک » (۳) د خان د « خاندان » (۴) خانزاده د د خوشال خان ختک کړوسی، د اشرف خان هجري لمسی او د افضل خان ختک زوي وُ (۶) پهٔ سرای او افضل آباد

کبنې یې استوګنه کړې وه (۷) دی په ځوانۍ کبنې له حپل پاتو ی

ځخه د هندوستان پر دپس شو او په دې توګه یې د سردارۍ

په سر پښتو شو او پښتو نکو پښتو ته شاکړه (۸) .

د ده پلار افضل خان خټک د ۱۰۷۴-۷۵ هـ ق کال شا او حو

زیږېدلی و (۹)، په ۱۰۹۲ هـ ق کال کبنې یې چې پلار اشرف خان

هجري د مغولو له خوا زنداني شو. خوشال خان خټک سردارۍ

بهرام ته وسپارله خو افضل خان ونه منله او د بهرام تر

منافقت وروسته په ۱۰۹۳ هـ ق کال د ختکو سردار شو (۱۰) او تر

۱۱۵۳ هـ ق کال پورې یې د اورنګ زیب او د هغه د اخلافو د

حکومت په دوره کبنې سردارۍ ۶۱ کاله دوام وکړ (۱۱) چې تر

سردارۍ وروسته یې د پاتې ژوند په باب معلومات نشته او

د مرګ نېټه یې نا معلومه ده (۱۲) .

د افضل خان خټک د ده په باب د سکندر خان خټک له

دې زېږي ځخه چې په اشرف خان یې کوي :

"بهادر خان" "صیف خان" لمسي دې ګله ګل دي

خدای دې دوړه خان صاحب ته مبارک کا (۱۳)

څرګندېږي چې افضل خان تر ۱۰۹۳ کال وړاندې یعنې د خانۍ

او سردارۍ تر پیلېدو مخکښې واده کړی و او د او خت د

دوو ماشومانو پلار و .

ښکاري افضل خان خټک د ۶۰ کلنۍ ۱۷ کلنۍ په سر

وادۀ کړې وي او دا یوه عادي خبره ده ځکه هغه وخت د خانانو او شتمنو په کور نیو کښې اولادونو ته لۀ ځوانیه وسره سم ودونه غوښتل کېدل ، لکه افضل خان چې په خپله هم خپل زوی محمد علیخان ته تر پنځلس کلنۍ وړاندې د محبت لور غوښتې وه (۱۴) او تر ۱۱۳۵ هق کال وړاندې یې محمد اشرف خان ته هم د ۱۴ کلنۍ شاو خوا وادۀ کړی وُ (۱۵). دۀ په ۱۰۹۳ کښې دوه زامن د "بهادرخان" او "صیف خان" په نومونو درلودل (۱۶) چې بهادرخان په تاریخ مرصع او مجمع الانساب کښې نۀ دی یاد شوی بنایي په ماشومتوب کښې مړ شوی وي خو "صیف خان" د "سیف الله خان" او "سیف خان" په نامه شته چې په ۱۱۱۹ هق کال یې دلاچې پوځدار ټاکلی دی (۱۷) او هم یې بل زوی د محمد سعید خان په نامه دی چې دی یې هم په ۱۱۲۹ هق کال دلاچې پوځدار ټاکلی دی (۱۸) کېدای شي دا دواړه د یوې مور زامن وي.

د ۱۱۱۴ هق کال شا او خوا افضل خان خټک دوې لاولده بیبیانې درلودې چې یوه یې آیسه نومېده او بله د یې بې نېکبختې وربېره وه. بنایي دا وخت یې لو مړی مېرمن مړه شوې وي ، دی د یې بې نېکبختې په تېنګار او ملتیا فقیرجمیل بېګ ته د زوی د غوښتلو لۀ پاره دعا ته ورځي ، هغه زېرې ورکوي چې : نېکبختې ته به یو زوی غواړې ما فی الحال

دوه ولیدل نور به هم پسې وشي او همداوه چې محمد
علي او محمد حسن د بي بي آیسې له نسه په ۱۱۱۵ او ۱۱۱٦
هـ ق کلونو کښې یو په بل پسې پیدا شول خو د دوهمې بي بي
یې څهٔ ورته ونهٔ وې ، هغه لا ولده پاتې شوه (۱۹) تردې
کال (۱۱۱٦) پورې فقیر جمیل بېګ ژوندی ؤ او پهٔ همدې
کال ومړ ؛

چون رفت از جهان این کرامت خدیو
بجز "ق" آمد ز عالم " غـــریـــو "
(۱۲۱٦ - ۱۰۰ = ۱۱۱٦ هـ ق) (۲۰)

لهٔ افضل خان ختک کره پهٔ ۱۱۱۹ هـ ق کال اسدالله او پهٔ
۱۱۲۱ هـ ق کال محمد اشرف خان پیدا شول (۲۱) د محمد علي خان
مور (بي بي آیسه) پهٔ ۱۱۳۰ هـ ق کال مړه شوه (۲۲)

تاریخ مرصع چې تر ۱۱۳٦ هـ ق کال پورې واقعات لیکښې
راغلي د افضل خان ختک د نورو زامنو او ماندینو ذکر نهٔ
لري او داهم د نورو پېښو پهٔ ترڅ کښې پهٔ ضمني ډول یاد
شوي دي .

مجمع الانساب چې د افضل خان ختک د سردارۍ تر پایه
(۱۱۵۳ هـ ق) پورې ددهٔ پهٔ باب غږ بېږي لیکي چې دهٔ لهٔ پنځو
ماندینو نه اتهٔ زامن درلودل : سعدالله خان او کاظم
خان لهٔ یوې موره ، محمد علي خان او حسن علي خان لهٔ بلې موره ،

عبید خان او محمد عماد خان لهٔ بلې مورې ، محمد اشرف خان لهٔ بېلې مورې او محمد سعید خان لهٔ بلې مورې (۲۳).

د تاریخ مرصع او مجمع الانساب په ښودنې تناقض لري دی، د تاریخ مرصع په قول په ۱۱۱۴ هـ ق کال افضل خان دوه ماندینې درلودې چې لهٔ یوې نه محمد علي خان او محمد حسن خان وزیر پیدا شول او د بلې اولاد نهٔ و . دهٔ دوه مشر زامن سیف الله خان او سعید خان هم درلودل چې یو یې په ۱۱۱۹ ـ و بل په ۱۱۲۹ هـ ق کال د لاچې پورځداران تهٔ کلي وو ـ د سکندر خان په وینا سیف الله خان د اشرف خان تر بندي کېدو (۱۰۹۲ هـ ق کال) وروسته او د ۱۰۹۲ هـ ق کال د محرم تر ۴ وړاندې زیږېدلی نو یقیناً دا دوه زامن یې لهٔ بلې ماینې یا نورو ماینو ښځه وو ، همدا راز په تاریخ مرصع کښې د اسدالله خان او محمد اشرف خان د مینځ د یادولو ضرورت نهٔ دی پېښ شوی (۲۴) خو کوم تناقض چې را منځ ته شوی هغه دادی چې په تاریخ مرصع کښې د افضل خان د شپږو زامنو نومونه : سیف الله خان ، محمد سعید خان ، محمد علي خان ، محمد حسن ، اسدالله خان او محمد اشرف خان راغلي (۲۵) خو په مجمع الانساب کښې د سیف الله خان نوم نشته ، محمد حسن د حسن علي په نوم راغلی ، اسدالله خان د سعدالله خان په نوم راغلی خو په حاشیه کښې اسدالله هم ورسره شته (یعني دی په دواړو نومونو یادېدهٔ)

کاظم خان ، عبید خان او محمد عمارخان نوي نوسونه دي چې تاریخ مرصع یې نهٔ یادوي او هم سعدالله خان تر ټولو مشر ګڼل شوی چې داسمه نهٔ ده اماڅرنګه چې سرداري دهٔ ترلاسه کړې نوشیرعلیخان فکر کړی چې دی به تر ټولو مشر وي (۲٦) همداراز عبید خان بنایي د همهغه عابد خان بل نوم وي چې کاظم خان شیدا دخپل دیوان نسخه ددهٔ پهٔ لاس محمدي صاحبزاده ته لیږلې ده (۲۷).

څرنګه چې تاریخ مرصع تر ۱۱۳٦ هق کال وروسته پیښې نهٔ لري او مجمع الانساب تر ۱۱۵۳ هق کال پورې دافضل خان خټک ژوند یقیني کوي نوځکه پهٔ دې مورده کښې ددهٔ د زامنو پیدا کیدل یوه عادي او طبیعي خبره دد چې پهٔ دې توګه مجمع الانساب د تاریخ مرصع معلومات ماتوي نه بلکې بشپړوي یې.

پهٔ روایاتو کښې د کاظم خان شیدا زیږیدل د ۱۱۳۵-۱۱۴۰ هق کلونو تر منځ اټکل شوي ، پهٔ دې برخه کښې نهٔ ماتوونکي او نهٔ زیات روښانوونکی سند نهٔ شته نوځکه همدا اټکل پهٔ دې برخه کښې تراوسه یوښهٔ اټکل پیلای شو.

کومه مرثیه چې د کاظم خان شیدا پهٔ دیوان کښې د دهٔ د والد پهٔ نوم چاپ شوې ، سمه نهٔ ده ، دا او ورپسې

قطعه يې د «والدې» په مرینه دي چې دا خبره هم د خطي نسخو د دود او هم دده د بېتونو د جوړښت او بشپړتابه په اساس معقوله او د منلو وړ ده (۲۸).

همدا راز د مجمع الانساب د لیکني له مخې محمد کاظم د اسدالله خان سکنی ورور دی او اسدالله خان د ۱۱۱۹ هق کال شا او خوا زېږېدلی او هم څرنګه چې د ۱۱۱۴ هق کال شا او خوا دده د مور یادونه نشته نو دده له مور سره د افضل خان خټک د وادهٔ کولو وخت د ۱۱۱۵ـ۱۱۱۸ هق کلونو په موده کښې اټکلولای شو، که د اسدالله خان او محمد کاظم خان دوی مور د وادهٔ په وخت کښې د ۱۶ یا ۱۸ کلو وي نو د زېږېدو وخت يې د ۱۱۰۰ هق کال شا او خوا ټاکلای شو او که د افضل خان خټک دا بي بي د ۱۱۰۰ هق کال زېږېدلې وګڼو نو په ۱۱۸۹ هق کال چې وفات شوې او کاظم خان شیدا یې دوې مرثیې ویلې دا د ۸۹ کلونو عمر درلودونکې وه، چې دا عمر هم له طبیعي او هم له عقلي نظره نامناسب نه دی نو د شیدا د دیوان د دې مرثیو نتیجه به دا وي چې دا دواړې قطعې دهٔ د خپلې مور په مړینه ویلې دي.

که څهٔ هم اسدالله خان د شیدا سکه ورور و (۲۹) خو له یوې خوا د دهٔ له سرداری او جاګیر سره مینه نهٔ وه

او لهٔ بله پلوه د خانۍ و سردارۍ پهٔ سر د دوی کورنۍ شخړې ناوړه حالت ته رسېدلې وې نو ځکه دهٔ پهٔ ځوانۍ وطن پرېښود او د هند مسافر شو، دې پېښو ته ددهٔ پهٔ دیوان کښې تلمیحي اشارې شوې دي (۳۰) او همدا ناوړه حالت ددې باعث شو چې ددهٔ ورور اسدالله خان ددهٔ دوراڼهٔ لښکر خان پهٔ لاس ووژل شي (۳۱) او همدې پېښې کاظم خان هم دردولی او ژړولی دی؛

لهٔ حب جاهه پهٔ زړهٔ کښې سوړ یم
د ملنګۍ وکار ته جوړ یم
سرمې خوړلی د شیرین ورور دی
لهٔ زندګۍ تر حلقه موړ یم (۳۲)

شیدا حنفي مذهب، دنقشبندیه طریقې صوفي (۳۳)، دیندار او پرهېزګاره انسان وُ (۳۴)، وادهٔ یې نهٔ وُ کړی او پهٔ کومه قطعه کښې یې چې د «قرهٔ عین» پهٔ مړینه اوښکې تویې کړې او قرة العین د زوی استعاره ده خو دا ددهٔ زوی نه بلکې زوی خوانده یې وُ چې دمسرې (مصرع) د «بدان» کلمه صراحت پرې کوي. یعنې: زما د سترګو کسی یې وبوله!

د شیدا شعر او شاعري پهٔ پښتو ادب کښې ځانګړی

د منفرد مقام لري او د تذکرهٔ کاملان رامپور دا ليکنه
يې نه داسې څرګند داغلې نهٔ بې راشي حتی په فارسي
کښې هم د بحث وړ دی (۳۵) کهٔ کامل صاحب مبالغه
او غلو هم کړې (۳۶) ده د انفراديت په برخه کښې د هره
شاعر نه ښکاري .

شيدا د نواب محمد فيض الله خان په عهد کښې د
مياشتې د زرو روپو نوکري درلوده (۳۷) او تر پايه
خپل پلرنې ټاټوبي ته نه دی راستون شوی
د شيدا د مړينې تاريخي ماده د "دل نظير" =
(۱۱۹۴ هـ ق) په ټوروکښې نعتني ده چې يوه ناپېژندل
شوی کابلی شاعر ويلې ده (۳۸) او دا خبره ترڅو چې
ماتوو ته سند نه وي پيدا شي او ترديدې کال وروسته ده
د ترو ند توړې نخښې نښانې و نهٔ موندلې شي ، د منلو
وړ ده

زه پای کښې د دغه لوی عالم استاد کامل مومند
روح ته دعا کوم ځکه که دوی په دې موضوع کښې عالمانه
ستلونه او پلټونه نهٔ وای کړي زما به ددې ليکنې لوړ
ته پام نهٔ و اوښتی او دا رساله به نهٔ وه ليکل شوې .

## پایلیکونه :

(۱) د دیوان سریزه ، د دهٔ په خپل قلم .

(۲) همدا سریزه .

(۳) همدا سریزه .

(۴) دیوان ، د پښتو د شعر حسب حال ، ۱۴ مخ .

(۵) تذکرهٔ انتخاب یادګار ، د اروا ښاد استاد کامل د ۱۶۳۰ کتاب په حواله ، ۲۰۶ مخ .

(۶) مجمع الانساب د خانزاده شیرعلیخان ، قلمي نسخه .

(۷) د کاظم خان شیدا د دیوان بېلا بېلې برخې .

(۸) د دیوان بېلا بېلې برخې .

(۹) دا اټکل د سکندر خان خټک له هغه منظوم لیک نه چې په ۱۰۹۳ هـ ق کال یې د اشرف خان په نوم لیکلی او هلته دی د شلو کلو کم و زیات ګڼلی ، کولای شو . د لیک قلمي متن د سکندر خان د دیوان په هغه نسخه کښې چې په پښتو اکیډمۍ کښې خوندي دی . د علي او د لیکوال د دوهم ټوک ادبي ستوري په ۳۴۴ - ۳۶۲ مخونو کښې خپور شوی دی ، او هم افضل خان په تاریخ مرصع کښې د ۱۰۹۲ کال د پېښو په ترځ کښې خان د ۱۶-۱۷ کلو بښيي .

(۱۰) دا موضوع پهٔ تاريخ مرصع کښې افضل خان خټک په تفصيل ليکلې ، ۴۹۲ - ۵۰۰ مخونه .

(۱۱) مجمع الانساب ، د خانزاده شېرعليخان، قلمي نسخه .

(۱۲) همدا اثر .

(۱۳) د سکندر خان خټک ليک ، ادبي ستورې ۲ ، ۳۵۴ مخ .

(۱۴) تاريخ مرصع ، ۴۰۸ مخ .

(۱۵) تاريخ مرصع ، ۴۴۱ مخ .

(۱۶) د سکندر خان ليک .

(۱۷) تاريخ مرصع ، ۳۸۵ مخ .

(۱۸) تاريخ مرصع ، ۴۱۳ مخ .

(۱۹) تاريخ مرصع ، ۶۰۳ مخ .

(۲۰) پهٔ تذکره کښې د فقير جميل بېګ د قبر ذکر .

(۲۱) تاريخ مرصع ، ۴۱۷ مخ .

(۲۲) تاريخ مرصع ، ۴۱۶ ، ۴۱۸ مخ .

(۲۳) مجمع الانساب ، قلمي نسخه

(۲۴) مجمع الانساب دا ذکر کوي .

(۲۵) تاريخ مرصع ، بېلا بېلې برخې .

(۲۶) مجمع الانساب

(۲۷) وګورئ د ديوان سريزه ، د شيدا پهٔ خپل قلم .

(۲۸) وګورئ د دهٔ د ديوان خطي او چاپي نسخې

(۲۹) مجمع الانساب .

(۳۰) موږ لهٔ ديوان نه پهٔ دې خبرې کښې کافي نمونې ورکړې دي .

(۳۱) مجمع الانساب .

(۳۲) ديوان .

(۳۳) ديوان . د دهٔ د خپل قلم سرېزه .

(۳۴) تذکرهٔ انتخاب يادګار او تذکرهٔ کاملان رامپور، داروابناد کامل، د ۱۶۳۰ کتاب پهٔ حواله ، ۲۰۷ مخ

(۳۵) تذکره کاملان رامپور ، د ياد شوي کتاب پهٔ حواله .

(۳۶) استاد کامل ، ۱۶۳۰ نومې کتاب ، ۲۰۹ مخ .

(۳۷) تذکرهٔ انتخاب يادګار ، داروابناد کامل د ياد شوي کتاب د ۲۰۷ مخ پهٔ حواله .

(۳۸) تذکرهٔ کاملان رامپور ، د استاد کامل پهٔ حواله .



# نوملیک

د وګړيو، ځایونو، نسلونو، کتابونو او نورو نومونو لړ

په دې نوملیک کښې د ځایونو نومونو ته د ستوري * نخښه شوې، کتاب ته «ک»، نسلونو ته «ن»، علمي او ستاینې مرکزونو ته «م»، او نورو ته واضح توري کېښل شوي دي

